# اسلام

او

## د اسلام نقش

## د فرد او جامعې په جوړولو کښې

د گل پا چا ((الفت))

# فهرست

**عنوان** **مخ**

# تقریظ

دپلار له مرګه وروسته ملګرو راته وویل چه پس لدې ته باید دهغه په هرنا چاپ شوی اثرباندې چه وروسته تردې راوځي یو څه ولیکې.
دهمدې مطلب دپاره مې دخپل پلار دغه اثرچه اسلام او داسلام نقش دفرداوجامعې په جوړولو کښې نومېږي څو ځلې ولوست او په نتیجه کښې دا راته معلومه شوه چه ماغوندې یوه سړي ته چه په دین باندې اساسي مطالعه نه لري پدغسې یوه کتاب باندې چه مؤلف ئې شل کاله ددیني علومو په تحصیل او څلویښت کاله ئې پدې لاره کښې په څېړنو او مطالعو تېرکړي وي، څه لیکل اسانه کارندی.
په حقیقت کښې همدا کتاب زما داسلامي مطالعې شروع او آغازګڼل کېږي. بیاهم دغه ځوکرښې دیوه متجسس او دهغه دپیرو په حیث چه دځوی ولي ډېره تینګه مینه او جذبه ئې هم ملګرې ده لیکم.
څلویښت کاله پخوا کله چه مرحوم الفت صاحب په عربي ژبه کښې دصرف، نحوې، منطق، بدیع بیان، معاني، فقه، وصول الفقه، تفسیر او دحدیث کتابونه ولوستل او په ځان ئې دا اعتماد حاصل شو چه دمطالعې له لارې دنالوستلو کتابونو تدریس هم کولی شي، درس لوستل ئې پرېښوده او دفامیل دمعیشت دتامین دپاره ئې ماموریت ته مخه وکړه.
دالفت صاحب دهغې زمانې دیني لوست او تحصیل پنځوس کاله وروسته نتیجه ورکړه او څوتکمیل یانا تکمیل واړه اوغتې دیني کتابونه ورنه جوړ شوه چه یوئې همدغه کتاب دی. په دې ترتیب داخبره صحیح شوه چه الفت صاحب له ملائی نه شاعری او لیکوالی ته، له هغه نه سیاست او پارلمان ته اوله دغه ځای نه دډېرو تجربو اوعلمي ذخیرو سره ببرته غائي اونهائي حقیقت ته او پدې لاره کښې خدمت ته رجوع وکړه.
داکتاب دمرحوم الفت صاحب دژوندانه دوروستیو شپووروستی اثردی چه دکلونو کلونو مطالعو او تجربو نه پس، او دخدای دکور دزیارت له اداکولونه وروسته( د **۱۳۵۳** هجری کال شروع ) ئې دهغه په لیکو پیل وکړ او دخپل ژوند دوروسته سلګیو دپای ته رسیدو سره ئې پای ته ورساوه( دقوس آخره **۱۳۵۶** ).
پدې اساس عالم الغیب خدای ددې کتاب هست او ژوند دالفت صاحب له نیست اومرګ سره له اذله یوله بله تړلی او ملګری کړی و.
داکتاب که څه هم دمتن له حیثه تکمیل ومګر نور کارئې پاتې و.
مؤلف پخپل قلم دکتاب په ځینو برخوباندی ځینې علامې ایښې وې اوله ځینو برخونه ئې سره خطونه تاوکړی ویا دا چه ځینې کرښې ئې یوځل محوه کړی اوبیائې بیرته پدغومحوه شوو خطونو دصحت علامې لګولې وې. ځینې داسې عبارات هم پدې کتاب کښې شته چه صرف په نښه شوی او نه معلومېږي چه دڅه دپاره؟
دکتاب ډېرې پاڼې پاکنویس شوی هم نه وې او په مشکل سره لوستل کیدې. دکتاب سره دماخذونوفهرست هم نه وموجود او دهغه علت به شاید دا وی چون کتاب اصلاً تحلیلی لیکل شوی او دخپل فکر اونظرنه ورکښې کار اخیستل شوی نو ځکه کتاب ما خذونه نلری یا ممکن وروسته به دا کار شوی وای.
دغه دلایل دا خبره واضحه کوي چه دشکل په لحاظ دکتاب څه کارپاتې و او مؤلف غوښتل چه پدې کتاب باندې بیاغور او فکر وکړي مګر اجل نور مهلت ورنکړ.
دتجدید نظر په وخت کښې شاید دکتاب ځینې مطالب وړاندې وروسته شوی هم وای.

قدرت له يوي خوا غوښتل چه دغه اثر د الفت صاحب دفكر او نظر محصول وي دده په تحليلي فكر او نظر وليكل شي مګر له بلې خوائې دا هم اراده وه چه د تجديد نظر د پاره ورته وخت او فرصت ورنكړي او دغه ضرورت بې ضرورته وګڼي.

ما د كتاب په تدوين او نقلولو كښې ځانته د هيڅ راز مداخلې، تصرف يا لاس وهنې حق ورنكړ او يوائې مې د اصلي نسخې له مخې نه يو بل نقل تهيه كړ.

علاوه ددې كتاب د آيتونو له تطبيق نه د قرآن پاك سره ما دغه اعراب هم د قرآن د اعرا بو سره برابر كړه ځكه چه د كتاب ايتونه اصلا اعراب ګذاري شوي نه و ، ما د كتاب د آيتونو حروف هم په قرآني تورو او حروفو واړول.

دا كتاب پدې لاندې مطالبو باندې بحث او څيړنه كوي:

١- اسلام.
٢- صالح عمل.
٣- اسلام او ايمان.
۴- د اسلامى جامعه جوړول.
۵- طبقاتي جامعه د اسلام په نظر كښې.
۶- امر په معروف او نهى له منكر څخه.
٧- د ظلم مخنيوى.
٨- مرسته او تعاون.
٩- د فرد جوړول.
١٠- مالكيت او مالى سياست په اسلام كښې.
١١- د اسلامى اخلاقو غايه او اغيزه.
١٢- جود او سخا.
١٣- اسلامي تصوف.
١۴- شريعت او حقيقت يا تشريع او تحقيق.
١۵- د صوفيانو مقامونه او احوال.
١۶- د تصوف طريقي.
١٧- د تصوف مدرسي.
١٨- د تصوف په باب ځينې آيتونه او حديثونه.
١٩- متكلمين او علم كلام.
٢٠- اجتهاد.

ددغو مطالبونه چه هر مطلب پدې كتاب كښې څيړل شويدى هغه آيتونه او احاديث هم ورسره يوځاى بيان شويدى چه د همدې مطلب يا موضوع د اثبات د پاره لازم او ضرور ؤ. وروسته بيا د دغو مطالبو د عملي جنبې د ښه روښانه كولو او ترسيمولو د پاره د حضرت محمد (ص) د يارانو ، اصحابو او نورو واقعى پيروانو په لنډې پېژندنې سربيره د هغوى د هر يوه دژوندانه شخصي او اجتماعي اعمال، احوال او كردار هم د هغوى د حيات په مختلفو مراحلو كښې څيړل شوى دى ترڅو پدې ترتيب د هرې موضوع او هر مطلب د نظر او عمل ترمنځ كامل توافق، تطابق او هم اهنګى ښه څرګنده شي او دا مطلب ډېر ښه افاده شي چه اسلام بې عمله ايمان يا بې ايمانه عمل نه خوښوى، ځكه چه د اسلام په صدر كښې هغه څه چه د اسلام پيغمبر حضرت محمد(ص) او نورو يارانوئې ويلى هغه ئې هماغسې په ځانونو باندې تطبيق كړيدي.

دا کتاب چه ډېر ساده، سلیس، روان او عام فهمه لیکل شوی ترټولوزیات دعامو خلکو دپاره ګټور ثابتېږي او هغه محروم عوام ددین په اصلي ماهیت او واقعیت ښه خبروي کوم چه تر اوسه له هرڅه نه محروم او بې خبره ساتل شوی ؤ حتی دخپل دین دمزیت نه هم.
په افغانستان کښې تر اوسه چه داسلام په باب په پښتو ژبه کښې څه لیکل شوی اکثراً په فرایضو او واجباتو یا ددین د ارکانو په باب دي او دصالحه اعمالو په برخه کښې دمسلمانانو اجتماعي وجایبو او مکلیفتونو باندې څه ندی لیکل شوي.
ځینې کتابونه داسې هم دي چه دآیاتو او احادیثو ترجمه ئې دومره مغلقه او پیچیده وي چه دجامعې ډېرلږ خلک یا یواځې خواص ئې په مطلب ښه پوهیدی شي او عام خلک ورنه بې برخې پاتې دي. له دین نه دعامو خلکو بېخبري او ناخبري شاید چه ډېر دلایل او عوامل ولري مګر یو علت به ئې همدغه دترجمو موضوع هم وي.
داسې کتابونه هم شته چه دیوې واقعې یا یوه مطلب په افاده او بیان کښې دهغې واقعې په عملي روش یا تاریخي جنبې باندې چه داسلام په صدر کښې هم پیښ شوی وي او دحضرت محمد (ص) او دهغه دیارانو او اصحابو عملي تجویز یا تصمیم هم په هغه مورد کښې معلوم او مشهور وي څه نه وائي او جریان مجهول پرېږدي.
داکتاب علاوه تردې چه دخپل متن دهرې موضوع دپاره دتحلیل او تحقیق شکل لري پورتني مطالب ئې هم ټول په نظر کښې نیولی دی او لدې لحاظه ویل کیدی شي چه ممکن دا به په پښتو ژبه کښې اولین اثر او کتاب وي چه ددې هیواد عام خلکو ته وړاندې کیږي ترڅو چه له یوې خوا ددوی فکري او ذهني سطحې دلوړولو او ارتقا سره مرسته وکړي او له بلې خوا داجتماعی وجایبو او تکالیفو یادصالحه اعمالو په سلسله کښې عامو خلکو ته یو لړ ډېر عمده ټکي او مطالب په لاس ورکړي او پدې وسیله دوی پخپلو اجتماعی او انسانی روابطو کښې خپلو هغو دینی وجایبو او مکلفیتونو ته ښه متوجه او ملتفت شي چه تر اوسه ورته نه ومتوجه شوي او یائې نه وپیژندلي.
همدغه دمسلمانانو اجتماعی وظایف او مکلفیتونه دي چه په تودې او جامعې ئې اثرپرېوزي او تعلق ورسره نیسي او دغه مکلفیتونه دي چه مسلمانان اجتماعی خدماتو ته چمتو کوي او دخدای له مخلوق سره ئې مینې او همدرۍ ته راکاږي، اجتماع ته شکل او صورت ورکوي او تنظیم پکښې راولي.
نو ځکه دغه موضوع ددغسې خاص اهمیت په اثر ددې کتاب دبحث او څیړنې اساسي محور تشکیلوی.
دهغو آیاتو په اتکاء او استناد چه پدې کتاب کښې بیان شوي دي هغه څوک چه په اجتماعی وجایبو او تکالیفو کښې مقصروي تش زهد او محض عبادت ئې له الهی عذاب او عتاب نه نشي ژغورلی. یوه مسلمان او د اسلامي ټولنې افرادو ته لازم او واجب دی چه خپل اجتماعي وظایف، تکالیف او مکلفیتونه چه دصالحه اعمالو عمده رکن دی او داسلام ددین ټول اجتماعي اساسات ورباندې ولاړ دی دفرایضو او واجباتو سره یوځای څنګ په څنګ او په مساوي او موازي توګه پرمخ بوځي، یواځې مونځ دديندارۍ دلیل او عامل ونه ګڼي، ځکه چه پاک خدای دخپل هربنده سره دهغه داجتماعی روابطو او مکلفیتونو په اساس هغسې معامله، محاسبه او عمل کوي.
کوم بل عمده نقش چه داکتاب ئې لري دادی چه هغه فکر او نظرچه وائي دین باید دژوندانه په سیاسي، اقتصادي، اداري او اجتماعي چارو کښې مداخله ونکړي او یواځې دعبادت په چوکاټ کښې په مساجدو او کتابونو کښې محبوس او محصور پاتې شي، په اساسي او قاطعه توګه تردیدوي او داثابتوی چه داسلام دین پخپل نهاد او تهداب کښې دمسلمانانو په ټولو اجتماعي روابطو او دهغوی دژوندانه په ټولو امورو او ساحو باندې کامل تسلط او نفوذ لري او یواځې په عباداتو پورې مربوط او منحصرنه پاتې کیږي د اسلام دین چه دبشر دسعادت تضمین کوي طبعاً باید دهغوی دژوندانه په ټولو امورو باندې کنترول ولري.
داکتاب په ډېر ښه ترتیب او ښه صورت سره دډېرو تاریخي پیښو او واقعیتونو په بیانولو او دښو مثالونو په څرګندولو سره داثابتوي چه اسلام دخپلو پیروانو داداري او سیاسي تنظیم او سمون دپاره ډېرسودمند او جامع مقررات لري، تقوی او اهلیت هغه دوه عمده پرنسیپونه دي چه او لاً داسلام له خوا د اداري دپاره وضع شویدي

او د اکتاب په دغه لړکښې د هغې اسلامي جامعې خصوصيات، شکل، اساسات، ماهيت، اقتصادي او حقوقي سيستمونه داسې تشريح کوي چه په هروخت او هر عصر کښې د خپلو پيروانو د دغوضرورتونو او احتياجاتو د اساساتو اوکلياتو ډيرښه جوابګوي وي، چه پخپله مؤلف هم ورته پخپل مختصر والفاظوکښې داسې اشاره کړيده:

((هغه سياسي جامعه چه اسلام د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم له وخته د حضرت عمر (رض) دوهم خليفه ترشهادته، او وروسته ترهغه هم کله کله دنياته وړاندې کړه يوه داسې جامعه وه چه سياسي قدرت پکښې بې کبره او بې غروره دډير صالح خدمتګار په حيث استعمال شو او عدالت وتقوى، مساوات، مشوره، حريت، قناعت او په نفس حاکميت ئې هغه ښکاره خصوصيتونه او مميزات وچه نظيرئې بيا چاونه ليد.))

د سياسي، اجتماعي او اقتصادي ديموکراسۍ په واقعي مفهوم او د دغه اصل دريښو اونيلوپه وده او انکشاف باندې پوهيدل چه څنګه، څه وخت او په څه ترتيب مينځ ته راغله د اکتاب ډيره ښه رڼا اچوي او دغه پديده د نورو پيغمبرانو او په تېره بيا د اسلام د پيغمبر او اسلامي دورې د نهضت مولود او محصول ګڼي او لدغه رهګذره کله چه د اکتاب د اسلامي صدر د جامعي اساسات څيړي او مطالعه کوي د دغې جامعې د جوړونکويعنې افرادو شخصيت، نظر، عمل او روش ته ګوري چه دغه جامعه له څنګه او کوموافرادونه جوړه شوې وه او بيا کله چه د دغې جامعې د افرادو شخصيتونه مطالعه کوي هلته په جامعې باندې نظر اچوي او د جامعې ماهيت او ساختماني شکل او حالت څيړي.

يعنې د جامعې څيره او عکس د هغې د افرادو په څيروکښې ګوري او د افرادو څيرې او عکسونه ئې په جامعې کښې مطالعه کوي. طبعاً کله چه دا دواړه خواوې يو د بل ممثل، معرف او ممد وي د جامعې او جوړونکو ماهيت او خاصيت يو شي، طبيعي ده چه ښه افراد، ښه جامعه جوړوي او ښه جامعه ښه افراد روزي او مينځ ته ئې راولي بيانو دغه شرايط خود په خوده او په اتوماتيکي ډول د هغې حقيقي او واقعي ديموکراسۍ د پاره ښه زمينه آماده کوي چه د اسلام د صدر جامعه ئې بهترين مثال و.

د افرادو او جامعې ترمينځ همه جانبه موازنه او توازن برقرارول او ساتل او د دواړوخواو د حقوقو، منافعو او آزاديوترمينځ د توازن رعايت او حمايه، د هغوى د هريوه د منافعو ترمينځ د تصادم مخينوى او په نتيجه کښې د دواړوخواو د قوت، قدرت او صلاحيتونو ترمينځ داسې حدود او سرحدتاکل چه يوه خوا هم هغه قوت او طاقت ونلري چه بله خوا وخوري يائې نابود اوختم کړي د اسلامي جامعې د بارزو خصوصياتو او مشخصاتو عمده او بارزصفت دى چه پدې کتاب کښې ئې ډيره ښه څيړنه شويده. د کتاتوره جامعه چه فرد او فرديت په کلي توګه محوه کړي يا فردي د کتاتوري چه د کتاتورلکه لويه هيولا اوبلاوى خلک خپل مخلوق وګڼي او جامعه ورته هيڅ قيمت او ارزښت ونه لري دواړه د اسلام له نظره منفوردي.

د غلام او غلامۍ د سيستم کلي اضمحلال، الغاء او دهغه ريښې شنډول چه د اسلام تر راتلو د مخه ئې لکه هيولىٰ د ډيرو انسانانو په سرنوشت باندې لويې کولې د اسلام د پيغمبر او په دنياکښې د اجتماعي عدالت د برقرارولو د يواځني قهرمان حضرت محمد (ص) او دهغه ديارانو په سيستماتيکي حرکت او عملي اقداماتو له مينځه ويوړل شو او دغه تاريخي او انقلابي افتخار هم د اسلام د اجتماعي عدالت د تامين په برکت دى چه برجسته مثالونه ئې پدې کتاب کښې ډيرپه ښه صورت راټول او څيړل شويدي.

په اقتصادي لحاظ د اسلام اقتصادي سيستم او روش ډير قاطع او مشخص دى او صريح احکام لري، اسلامي عدالت او مساوات دانه خوښوي چه په يوې اسلامي ټولنې کښې يوئې نادار او پريشانه او بل ئې د قاروني جايدادونو مالک او خاوند وي.

که د اسلام اقتصادي سيستم په يوه جمله کښې خلاصه کيدى شي نو ويلى شو چه له شتمنونه اخيستل او په نادارو ئې ويشل د اسلام اقتصادي پاليسي ده او دغه ويش هم بايد داسې وي چه د نادار حيثيت او انساني کرامت ته هيڅ راز صدمه ونه رسوي.

فاحشه سرمایه او غنا په اسلام کښې د سرکشۍ، فتنې، فساد، ظلم، کبر او تکبر تومنه او منبع ښودله شوېده چه د هر راز بیعد التیو سبب گرځي.
له فساد سره مبارزه، له ظلم سره مقابله، له بعیدالتۍ سره مجادله د حق حمایه او د عدالت قایمول اسلامی امر او تعلیم دی نو ځکه د اسلام دین ملاکي، سرمایه داري، خاني او سرداري نه خوښوي او په ښه نظر ورته نه گوري.
ځکه چه د پیغمبرانو د اوامرو په مقابل کښې سرکشي، تمرد او نافرماني همدغو خلکو کړېده، تحول او نوی دین دوی نه دی منلی او د ارتجاع حامیان او د زاړه حال طرفداران هم دوی پاتې شویدي.
فاحشه سرمایه او شتمنی پخپل اصل کښې د ظلم، ظالمانو او نورو بیعدالتیو په مقابل کښې خپل خاوند او مالک زبون، جبون، ترسو او بزدله کوي او د مجادلې او مبارزې جرئت، احساس، توان او شهامت ورنه اخلي او اسلام نه غواړي چه پیروان ئې زبون او جبون وي او د حق او عدالت په برقرارولو کښې د ظم او ظالم له مقابلې نه وو برېږي یا وډار شي.
نو ځکه اسلام سرمائې او شتمنۍ ته ښه نظر نلري. البته هغه سرمایه دار چه خپله سرمایه د جامعې د خیر او د خلکو د گټې د پاره په کار اچوي په اسلام کښې ډېر غټ حیثیت او مقام لري او په دغه ډله کښې نه حسابېږي.
اسلام نه یواځې فاحشه غنا او سرمایه چه د انسانیت د ښمن دی بد گڼي بلکه هر هغه شی چه له یوه انسان نه د هغه انسانیت اخلی نه خوښوي او داېدې چه اسلام اصلاً انسان سازه او انسانیت پروره دین دی.
غیرملي، غیر دیموکراتیک، غیرولسي مسلکونه او نظامونه چه د ځان بقا او دوام غواړي په یوې ټولنې کښې همیشه په سردار، ملاک، خان او سرمایه دار اتکا کوي، همدوی د خپلو اجراآتو د پرمخ بیولو د پاره جذبوي ځکه چه عقیدوي او مفکوروي نژدیوالی او اشتراک دوی یوله بله سره تړي او ملگری کوی داېدې چه د دغه راز خلک په ټولنې کښې د تخریب، فتنې او فساد په خپرولو کښې خاص مهارت لری او غیرملی او غیر ولسي مسلکونه یا نظامونه خو په ټولنې کښې غیر د فساد له خپرولو نه بله سرمایه گذاري اصلاً نه منلی شي او نه ئې کولی شي.
بیا هم هدا د اسلام دین دی چه هدف او مقصد ئې د اجتماعی عدالت تامین، د مساواتو برقراری او د واقعي دیموکراسۍ تعمیم دی نو ځکه ئې د فتنې، فساد او ظلم د له منځه وړلو د پاره له خپله آغازه د غو ظالمانو، سردارانو او سرکشو خلکو د مخالف قطب یعنې د تودې په اکثریت لکه نادارو، مظلومو، محتاجو، مسکینو او غریبو خلکو اتکا کړېده او د خپلو اجراآتو او اهدافو د پرمخ بیولو د پاره ئې هم دوی له ځانه سره شریک او ملگری کړی دی.
د حضرت محمد (ص) او د هغه د یارانو او اصحابو حیرانوونکی کارنامې، اجراآت، اقدامات او تعیینات په دغه مورد کښې هم د اسلام د دغه اقتصادي سیستم د تعقیب ښکاره ثبوت دی.
دا روش د غه حقیقت ثابتوي چه د اسلام د صدر جامعې د اجتماعي عدالت، کاملې برابرۍ او دیموکراسۍ د پاره خپل اداري او اقتصادي سیستمونه د واړه یوله بل سره هم آهنگ کړی وا و د یوه هدف د تامین د پاره ئې یو ځای پرمخ بیول.
د حضرت محمد (ص) په مبارکو لاسونو باندې د حضرت بي بي خدیجې، حضرت عثمان او د اسلام د نورو ډېرو واقعي پیروانو د ثروت او دارایی د توزیع کولو طرز همدغو نادارو او بیوزلو ته دا په ټینگه ثابتوی چه یواځې او یواځې همدا د اسلام دین او هغه هم د حضرت محمد (ص) او د هغه د یارانو او اصحابو د وخت اسلام و چه رفتارئې د گفتار او کردار سره یو و چه هغه په ډېر وسیع معنیٰ عبارت و د یوې سالمې او آزادې جامعی له جوړولو ځخه.

عزیزالرحمن «الفت»
دحوت ۱۰ - کال ۱۳۵۲

بسم الله الرحمن الرحيم

# مقدمه

چاچه په بشري تاريخ کښې بې تعصبه صحيح تحقيق کړی او د منصف نظر خاوند دی دا مني چه پيغمبران، مصلحان او اخلاقي رهبران د بشريت لارښوونکي دي چه د انسان په تهذيب او اصلاح کښې ستره برخه لري او د جوامعو په ښه کولو او سمولو کښې ئې کار او زيار د ډېر قدر وړ دی. دوی د دې د پاره چه نيکي په بدۍ او حق په باطلو غلبه و مومي، کړاوونه ګاللي، اورونو ته غورځول شوي، په کاڼو ويشتل شوي، په سولۍ ځوړول شوي او رټل شويدي. د دوي په تعليم او تربيت ډېرنه سړي سړي شويدي او قومونه د انسانيت په سمه لار منزل مقصود ته رسيدلي دي.
هر دين په خپل وخت کښې د تکامل او ترقۍ په لور کاملاً يو مفيد حرکت و چه بشريت ئې وړاندې بيولی او فرهنګ ته ئې لوی خدمت کړيدی، د فرد جوړښت او د ټولنې ټولښت دلويو اديانو ميوه ده چه اسلام د غه ميوه نوره هم خوږه کړيده.
په دې کښې شک نشته چه د فرد او جامعې ښه والی او سموالی يو په بل پورې کلک تړون لري.
افراد جامعه جوړوي او جامعه د افرادو په جوړولو کښې مؤثر نقش لري. د فرد د رشد او تکامل د پاره ښه جامعه په کار ده او ښه جامعه د ښو اشخاصو په لاس جوړېږي. که د فرد او جامعې ترمنځ توازن ونه ساتل شي نو بيا يو په بل تېري کوي او خوري ئې.
په يوه ټولنه کې که فرد او فرديت ته زياته اعتنا وشي او فردي آزادي له خپله حده تجاوز وکړي نو بيا ځينې افراد د خپلو خاصو استعدادونو يا د مساعدو شرايطو او حالاتو په وجه ډېر پياوړي کيږي او په نورو افرادو تسلط پيدا کوي چه په دغه صورت کښې د انساني استعمار او استثمار مسئله منځ ته راځي او طبقاتي تضادونه طغيان کوي. که بالعکس فرد بيخي بې اهميته وګڼل شي او د ټولنې د قربانۍ ګډوری شي نو بيا د جامعې درونـد سيوری په افرادو لوېږي او استعدادونه ئې وده نشي کولی. د فرد او جامعې په معامله کښې افراط او تفريط دواړه ډېر خطرناک دي او د دغې موازنې ساتنه د ډېرزيات دقت غواړي. که د دي تلې هره پله درنه شي اجتماعي عدالت له منځه ځي او ظلم منځ ته راځي.
اسلام د فرد او جامعې په جوړولو کښې د اجتماعي نظام په حيث هم د فرد شخصيت او حيثيت محترم ګڼلی، هم ئې د جامعې خير او مصلحت په نظر کښې نيولی دی، هم ئې يو قوي او ستر جماعت يعنې اسلامي امت جوړ کړی چه عرب او عجم، تور او سپين، بډای او فقير ته ئې مساوي حقوق ورکړی او اجتماعي عدالت ئې له هرڅه پورته او لوړ ګڼلی دی، هم ئې د شخصيت او استعداد رشد او تکامل ته زمينه مساعده کړې چه افراد د قابليت په صورت کښې نبوغ او قهرمانۍ ته ورسيږي او فرديت تجلي وکړي.
د فرد او جامعې جوړول د دواړو د پخلاکولو او ملګري کولو په معنی هم په اسلامي نظام کښې په ډېر دقت له نظر لاندې دي. هغه متوسط حد چه په دغه مورد کښې اسلا م موندلی د فرد او جامعې متضادې ګټې خوندي کوي او يو له بله ئې مربوطوي.
اسلام د فرديت له روزلو سره په افرادو کښې اجتماعي شعور او احساس دومره قوي کړی چه فرد د جامعې په خدمت کښې د سر او مال قربانۍ ته چمتو شو او په خپله اراده ئې عمومي خير او مصلحت په شخصي ګټو مقدم وګاڼه او شخصيت ئې د خلکو په خدمت کښې وموند.
د اسلام د بريا ليتوب راز په همدې کښې دی چه په خپلو پيروانو ئې د ايثار او قربانۍ رښتيانۍ جذبه او ټينګه اراده پيدا کړه چه د اجبار ځای اختيار ونيوه.

په اسلام کښې د جامعې د خیر او مصلحت د پاره د سر او مال قربانول یو لوړ هدف وګرځید او تقدس ئې وموند چه په روحي او نفسیاتي لحاظ څه بایلل څه ګټل وګڼل شوه او په ذهن او شعور کښې ډېر لوی اساسي او حسي بدلون راغی او د قربانۍ افتخار د افرادو نصیب شو.

که چیرې اسلام فرد ته د مالکیت حق نه وای ورکړی څه به ئې قربان کړي ؤ؟

که فرد په فداکارۍ مجبور وای او د ده اراده پکښې دخیله نه وای د ایثار او فداکارۍ معنی به څه وه؟

دبې ارادو افرادو حرکت او عمل به هم ماشیني و او د فکر کولو ضرورت به نه و موجود.

پخوا تردې چه د اسلام فعال او خلاق نقش د فرد او جامعې په جوړولو کښې په دوارو معناؤ و څیړو ښه به داوي چه د اختصار په ډول د اسلام په حقیقت او ماهیت ځان پوه کړو او پخوا تردې چه د اسلام ماهیت او حقیقت ځانته معلوم کړو بهتره ده چه د اسلام او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د نبوت او رسالت مطالعه له آغازه شروع کړو.

# مُحمد صلی الله علیه وسلم

## ۵۷۰-۶۳۲م

کله چه د وحي ورځې رانژدې شوې محمد (ص) له خلوت سره مینه پیدا کړه ځکه به د حرا غار ته ورته او په شپو شپو به ئې هلته عبادت کاوه او آسمانی خوبونه به ئې لیدل. دده رښتیاني خوبونه د وحی مقدمات وه چه د چا په قول ئې شپږ میاشتې دوام وکړ.

د عمر څلویښت کاله ئې چه پوره شوه حضرت جبریل ورته د روژې په (۱۷) د دوشنبې په ورځ د نبوت پیغام راوړ د غه وخت د قمری کال په حساب دده عمر څلویښت کاله ، شپږ میاشتې او اته ورځې وې او د عیسوي میلاد (۶۱۰) د اګست شپږمه وه چه دی د حرا په غار کښې و او د (اِقرَأ) امر ورته وشوه چه د وحی آغاز ؤ.

چا چه لومړی په ده ایمان راوړ په ښځو کښې بي بي خدیجه، په هلکانو کښې لس کلن (علي) او په آزادو سړیو کښې په احرار و رجالو کښې (۳۷) کلن (ابوبکر)، په موالیو کښې (زید بن حارثه) په مریانو کښې (بلال بن رباح) حبشی و.

### اسلام ته خفی دعوت:

وروسته تر هغه چه (یآاَیُّهاالمِدَثِر) سورت نازل شو محمد (ص) په غیر علني ډول اسلام ته د خلکو بلنه شروع کړه او د هغه خفي دعوت درې کاله دوام وکړ، په دغه موده کښې به مسلمانانو مونځونه له مشرکانو نه په پټه کول. یوه ورځ یوه مشرک ولیده چې (سعد بن ابی وقاص) په یوه پټ ځای کښې لمونځ کوي ځکه ئې دده دغه کار وغانده او سعد د هغه سره په شخړه اخته شو او مشرک ئې زخمي کړ، دا لومړی وینه وه چه په اسلام تویې شوه.

په همدغه وخت کښې رسول الله (ص) او څو تنه اصحاب دارالارقم ته ننوتل او هلته به ئې لمونځ او عبادت کاوه. دارالارقم دصفا د غونډۍ په بیخ کښې دارقم ابن ابی ارقم کور وچه په اسلام کښې له سابقونو څخه دی.

یو شمیر صحابه چه د حضرت ابوبکر په بلنه مسلمانان شوي ؤ داوو: عثمان ابن عفان، زبیر بن عوام، عبدالرحمن بن عوف، سعد بن ابی وقاص او طلحه بن عبیدالله.

## د اسلام اظهار:

دخفي دعوت درې کاله چه پوره شوه په (۶۱۳)عيسوی کښې الله پاک رسول الله(ص) ته امروکړچه خلک په ښکاره دين ته راوبوله(فَاصدَع بِمَا تُوءمرُوَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ –الحجر آيت۹۴ )يعنی ښکاره کړه هغه څه چه پرې مامور کېږې اوله مشرکالو څخه مخ واړوه.

داهم ورته وويل شوه:(وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ –الشعرآء آيت۲۱۴ ) وويروه خپله ډېره نژدې قبيله.

داسلام ښکاره دعوت چه شروع شواو پيغمبرخپل رسالت علني کړ دقريشو مشران: عتبه اوشيبه د ربيعه زامن، ابوالبختري دهشام زوی، اسود ابن المطلب، وليد ابن مغيره، ابوجهل بن هشام ، عاص بن وايل سهمی، نبيه اومنبه دحجاج زامن اوداسې نور ابوطالب دحضرت محمد(ص) تره ته ورغلل او ورته وئې ويل:

ستاوراره زمونږ خدايان وکنځل، زمونږدين ته ئې بدوويل، زمونږ پلرونه ئې گمراهان وبلل، ته به ياهغه منع کوې او يابه ئې مونږ ته پرېږدې او لاس به ترې اخلې، زمونږدين ستا دين هم دی او تاهم دهغه دين ندی قبول کړی. ابوطالب له هغوی سره په ښه ژبه خبرې وکړې او رخصت ئې کړه دی پخپله رسول الله(ص) ته ورغی او د هغوی دغه خبرې ئې ورته وکړې، دخدای رسول(ص)له خپل دعوت نه لاس وانه خيست اوخپل رسالت ته ئې دوام ورکړ.

قريش بيا ابوطالب ته ورغلل او داځل ئې ورسره په تنده لهجه خبرې وکړې خوبيا هم څه نتيجه ترې حاصله نشوه دريم ځل بيا دغه راز مفاهمه تکرار شوه مگراولوالعزم پيغمبرخپل رسالت په هيڅ صورت پرينښود. بالاخره قريشو پخپله رسول الله(ص) ته رجوع وکړه او ورته ئې وويل که له دغه کاره لاس واخلې هرڅومره مال چه غواړې دربه ئې کړو چه له ټولو نه زيات مالدارشې، که د قريشو قيادت او سيادت دې خوښ وي ټول به دې اطاعت ته غاړه کېږدو او امرونه به دې منو ، که مريض ئې اوڅه صحي عارضه درته پيښه وي طبيبان به درته راوغواړو او علاج به دې وکړو. رسول الله(ص) ورته په ځواب کښې وويل: که څوک مې په يوه لاس کښې لمر او په بل لاس کښې سپوږمۍ کېږدې قبول به ئې نکړم او له خپل رسالت نه به لاس وانخلم.

کله چه قريش پخپلو ټولوکوششونو کښې ناکامه شوه نو دحضرت محمد (ص) او دده داصحابو دځورولو او ازارولو اراده ئې وکړه اوخصوصاً هغه مومنان چه ضعيفان او بې مرستې و لکه موالي او غلامان چه قومې ملاتړئې نه درلود او له نوروځايو راغلي و له سختو شکنجواوعذابونولاندې ونيول شوه چه له اسلامه واوړي او د حضرت محمد (ص) پيروي پرېږدي مگر اسلام او حضرت محمد(ص) دخپلو پيروانو په روح اوضمير کښې دومره عميق نفوذ کړی وچه ددين په لارکښې ئې دسر اومال قربانول ابدي ژوند گاڼه او له ډېرو شديدو فشارونو لاندې ئې خپل ايمان ټينگ ساته.

په دغسې وخت کښې چه مومنان ډېر لږ اوپه ډېر ضعيف حالت کښې و دحضرت محمد(ص) علني تبليغ او ښکاره اسلام مسلمانان له ډېر مشکل امتحان سره مخامخ کړل.

هغه نقش چه اسلام ئې دافرادو او اشخاصو په روحی تقويه او معنوي جوړښت کښې لري په همدغه لومړی مشکله مرحله کښې خپله معجزه ښيي او دا ثابتوی چه اسلام دډېرو ضعيفو کسانو روحيه او سجيه څومره پياوړې کړه او له څنگه خلکو نه ئې څنگه خلک جوړ کړه؟

دمثال په ډول ددغو څوتنو مقاومت او ټينگ عزم دخاصې يادونې وړدی.

## بلال:

حضرت بلال دحبشي رباح زوی چه مور اوپلارئې اسيران نيول شوي و اودی د اميه بن خلف غلام پاتې شو داسلام په دين مشرف شواو په همدغه وجه به اميه دی لوڅ لغړ په سره غرمه کښې په سروشگو کښې څښ کړاو درنه تيږه به ئې په

سینه ورته کیښوده چه د کفر کلمه پرې ووایې اولات و منات او عزی په خدایي ومني مګر بلال به په همدغه حال کښې احد احد ویل او خپله عقیده ئې نه پټوله.
چاچه د مکې معظمې د سره اوړې سره غرمه لیدلې وي هغه پوهیدلی شي چه د دغه عذاب تحمل څومره مشکل دی او په دغسې حال کښې د وحدانیت اواز او چتول څنګه ایمان غواړي؟
یوه ورځ چه دغه حال ابوبکر ولید نو امیه ته ئې وویل له خدایه نه ډارېږي چه دغه مسکین دغسې په عذابوې. امیه ورته وویل: تا فاسد کړیدی ته ئې خلاص کړه. ابوبکر وویل: زه یو غلام لرم چه ستا په دین دی هغه به تاته درکړم ته دی ماته راکړه. امیه داخبره ومنله او بلال ئې حضرت ابوبکر ته ورکړ، ابوبکر هغه سمدلاسه ازاد کړ او له دغسې عذابونو نه ئې نجات ورکړ.

## یاسر، عماربن یاسر او سمیه (یاسر ښځه):

هغه وخت چه رسول الله (ص) په دارالارقم کښې و او د مسلمانانو شمیر لا څلوېښتو تنو ته نه و رسیدلی چه عمار، یاسر او سمیه مسلمانان شوه او بني مخزومو په همدغه سبب عمار او دده پلار او مور په ټکنده غرمه کښې ابطح ته بیول او سرې شګې به ئې پرې راارولې چه دغه دین پرېږدي او بېرته پخواني دین ته واوړي. رسول الله (ص) چه دوی په دغه حال ولیدل نو ورته ئې وویل:
(صَبراً آلَ یَاسَر فَاِنّ مَوعِدَکُمُ الجَنّةُ) صبر کوی ځای موجنت دی. دالنده وینا چه دیوه پیغمبر د خولې وه دومره موثره وه چه یاسر په دغه سخت عذاب کښې مړشو او خپل ژوند ئې دعقیدې په لاره کښې قربان کړ.
سمیه هم په همدغه حال کښې صابره پاتې شوه او چه ابوجهل ورته بد رد وویل، دې هم بالمثل سخت ځواب ورکړ او ابوجهل په ډېرې بیرحمۍ په فجیع او وحشیانه ډول ووژله. په اسلام کښې لومړی شهیده همدغه سمیه د عمار مور ده چه د ابوجهل په لاس په جارحه آله په قتل ورسیده. سمیه په دغسې حال کښې هم له ابوجهل غوندې ظالم او قسي القلب سړي نه ونه ویریده او ځواب ئې وروګرځاوه.

## خباب:

وائي چه دی شپږم سړی و چه په اسلام مشرف شو او د قریشو له لاسه په هغو سروشګو کښې ښخیده چه جوار به پکښې وریته کیدل مګر خباب په هیڅ صورت چاله خپلې عقیدې وانه ړاوه او په خوله ئې هم د کفر کلمه رانغله که څه هم دده په شا به په اورسرې کړې تیږې هم اېښودل کیدې.

## صهیب:

د سنان رومی ځوی صهیب چه دی او عمار بن یاسر په یوه ورځ مسلمانان شوی ؤ او د مسلمانانو شمیر لا څلوېښتو ته نه و رسیدلی د قریشو له لاسه ئې ډېر عذابونه او کړاوونه ولیدل او د هجرت اراده ئې وکړه قریشو دی پدې شرط پرېښود چه خپل مال ئې ټول قریشو ته پرېښود او دی ترېنه یوسر او دوه غوږه لاړ.

## عامر بن فهیره:

رسول الله (ص) لا دارالارقم ته ننوتلی نه و چه عامر بن فهیره اسلام راووړ. دی هم د ضعیفانو له جملې څخه و او له ډېروستونزو او کړاوونو سره مخامخ شو مګر مقاومت ئې له لاسه ورنکړ او بې ایمانه نشو. حضرت ابوبکر دی هم وپیره او ازاد ئې کړ.

لبيبه:

دبنی مومل مينځه هغه وخت مسلمانه شوه چه عمربن خطاب لا په اسلام مشرف شوی نه و. عمر د اسلام په وجه لبيبه په راز راز عذابونو کړوله مګر عمرغونديږ يوه قوي شخص ونکړی شوه چه دلبيبې په ايمان غلبه وموموي او د اسلام جذبه ئې مړه کاندي. دا هم حضرت ابوبکر وپيرله او ازاده ئې کړه.

دا و د ايمان دقوت يو څو مثاله چه د شرک او کفر په مقابل کښې ئې ثبات او مقاومت د اسلامي تاريخ له مفاخرو څخه ګڼلی شو.

اوس چه د اسلام لومړنی حال څه نه څه معلوم شو په اسلام به يو اجمالی نظر واچوو او و به ګورو چه دغه دين له خپلو پيروانو څه غواړی او څه ترې جوړوي؟

# اسلام

د اسلام سپيڅلی دين په دوو ټکو کښې خلاصه کولی شو:

ايمان او صالح عمل.

په قرآن کريم کښې چه هرځای ايمان ياد شويدی صالح عمل (**وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ**) ورسره جوخت ملګری دی. يعنې بې عمله ايمان اوبې ايمانه عمل ئې ندی پکار.

ايمان دهغې عقيدې نوم دی چه سړی ديوه خدای خدائي، دمحمد(ص) پيغمبري دزړه په صدق ومني، قرآن کريم او دالله تعالی (ج) نورکتابونه، ملکې اوپيغمبران په حقه وګڼي، خير او شر د خدای له لوري مقدر وبولي او پس له مرګه بيا ژوند ته اميدوار وي.

صالح عمل دوه ډوله دی: يو هغه فرايض او واجبات دي چه مومنان ئې دعبادت په توګه سرته رسوي يعنی کلمه ويل، مونځ کول، روژه نيول، زکوة ورکول، حج اداکول او داسې نور واجبات.

بل هغه اجتماعي وظايف اومکلفيتونه دي چه په اجتماع او جامعې پورې تعلق لري او په نورو ئې اثر پرېوزي. په تعبدي فرايضو کښې هم زکات ورکول علاوه په دې چه مالي عبادت دی اجتماعي منظور پکښې ډېر قوي دی چه نورو ته ئې خير او ګټه رسېږي.

دجمع، جمعې او اخترونو مونځونه او حج هم اجتماعي جنبه لري، دصالحو اعمالو ډېره درنه او مهمه برخه هغه وجايب اوتکاليف دي چه اجتماعي ژوند او دجامعې نيکمرغي تامينوي.

اسلام که له يوې خوا دمومن اومسلمان تعلق له خدای سره ټينګوي له بلې خوائې دجامعې دمفيد اوصالح غړی په حيث دجامعې اجتماعي خدماتو ته چمتوکوي او دخدای له مخلوق سره ئې مينه او همدردي پيدا کوي.

که څوک په اجتماعي وجايبو اوتکاليفو کښې مقصر وي تش زهد او مخص عبادت ئې له الهي عذاب او عتاب څخه نشي ژغورلی.

په قرآن کريم کښې د اسورت: (**أَرَأَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ فَذَلِكَ الَّذِي يَدُعُّ الْيَتِيمَ وَلَا يَحُضُّ عَلَى طَعَامِ الْمِسْكِينِ فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ الَّذِينَ هُمْ يُرَاؤُونَ وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ**)

په ډېر صراحت مونځ کوونکي پوهوي چه يوازې مونځ د دينداری دليل نه دی بلکه له دغه مهم عبادت سره ديتيم او مسکين مرسته او لاس نيوی هم ددين مهم رکن دی که څوک دا کارنه کوي اومحض عبادت او مونځ کوي هغه په حقيقت کښې ريا کار اوله لمانځه څخه غافل دی چه دين ئې په صدق نه دی منلی او دافسوس وړ دی.

په دې آيتونو کښې الله تعالی دخطاب په ډول خپل رسول (ص) ته وايي:

آیا لیدلي دې دي هغه څوک چه د دین تکذیب کوي او د جزا ورځ دروغ ګڼي دا هغه څوک دی چه یتیم رټي او د مسکین په مړولو کښې له تحریص او بیړې نه کارنه اخلي، د هغو مونځ کوونکو په حال افسوس چه له خپل لمانځه څخه غافل دي او ماعون منع کوي.

ماعون هغه ورځني کار آمد شیان دي چه خلک ئې معمولاً یو له بله په عاریت غواړي لکه: کټوه، دیګی، تبر، لور، تار، ستن او دا سې نور.

په اسلام کښې مومن د مومن ورور ګڼل شوی او ( اِنَّمَا المؤمِنُونَ اِخوَةٌ ) قرآنی تړون دی چه مومنان ئې د ایمان په حبل المتین ټینګ تړلي دي.

دا وروري محض د خولې خبره نده او عملي ثبوت غواړي چه باید په زړه کښې ځای ولري او په لاس او پښو ئې عملاً اثبات وشي.

رسول الله (ص) مومن او مسلمان دا سې معرفي کوي:

(لَا یُؤمِنُ اَحَدُکُم حَتّیٰ یُحِبَّ لِاَخِیهِ ما یُحِبُّ لِنَفسِهِ-عن انس رواه البخاری) یعنې ستاسو هیڅ یو (کامل )مومن کیدی نشي څو چه د خپل ورور د پاره محبوب ونه ګڼي هغه چه د ځان د پاره محبوب ګڼي یعني هغه څه چه په ځان ئې لوروي باید په بل مومن ئې هم ولوروي. دا هم د رسول الله (ص) حدیث دی:(اَلمُؤمِنُ اَخُو المُؤمِنِ لَا یَظلِمُهُ وَلَا یَخذُلُهُ وَلَا یَسلِمُهُ)مومن د مومن ورور دی چه نه پرې ظلم کوي نه ئې یو اځې پرېږدي او نه ئې ظلم ته سپاري. په یوه بل حدیث کښې راغلي دي:(اَلمُؤمِنُ لِلمُؤمِنِ کَالبُنیَانِ یَشُدُّ بَعضُهُ بَعضًا-عن ابی موسیٰ رواه البخاري) مومن د مومن د پاره لکه بناء دا سې ده چه بعضې ئې بعضې ټینګوي.

د مسلمان په باب رسول الله(ص) ویلي دي:(اَلمُسلِمُ مَن سَلِمَ المُسلِمُونَ مِن لِسَانِهِ وَیَدِهِ—بخاري) مسلمان هغه دی چه مسلمانان ئې له ژبې او لاس څخه په امان وي.

اسلام د یوه مسلمان تش طاعت او عبادت ته نه ګوري بلکه په اجتماع کښې ئې ګوري چه له نورو سره څه سلوک او څه راز رویه لري.

وايي چه یوه شاهد د حضرت عمر (رض) په مخکښې شاهدي اداکړه او هغه د غه شاهد ته وویل دا سې څوک راته راوله چه تا پېژني. شاهد یو سړی راووست چه د شاهد ښه ستاینه ئې وکړه عمر (رض) ستا یونکی ته وویل ته ئې نژدې ګاونډی (همسایه) ئې چه مدخل او مخرج ئې درته معلوم وي؟ستایونکي وویل: نه ! عمر (رض)وویل: په سفر کښې ئې ملګری شوی یې چه اخلاقي مکارم ئې درته څرګند شوي وي؟ هغه وویل: نه ! عمر (رض) بیا وویل: د درهم او دینار معامله دې ورسره کړیده چه پرهیزګاري او تقویٰ ئې درته ښکاره شوي وي؟ هغه بیا دنه ځواب ورکړ.

دا ځل حضرت عمر (رض) ورته وویل: ګمان کوم چه په مسجد کښې دې په لمانځه ولاړ لیدلی چه د قرآن په لوستلو ئې همهمه او زمزمه کړیده او خپل سرئې ټیټ کړی او جګ کړی دی. ستایونکی وویل: هو ! عمر هغه ته وویل: ځه لاړ شه ته ئې نه پېژنې او شاهد ته ئې وویل: لاړ شه بل څوک راوله چه تا پېژني.

له دې ماجرا څخه ډېره ښه معلومېږي چه اسلامي نظر یو مسلمان یوازې په مسجد کښې نه ګوري په کور کښې، په سفر کښې او په معامله کښې ئې هم ګوري او شهادت ئې هغه وخت قبلوي چه عملاً ئې اجتماع ته ښه امتحان ورکړې وي.هغه څه چه اسلام ئې په پوره مومن او مسلمان کښې غواړي او خوښه وي ئې په دې آیتونو کښې ئې بیان په ښه شان شوید ي:

(لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَـكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِوَالْمَلآئِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ وَآتَى الْمَالَ عَلَى حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَالسَّآئِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ وَأَقَامَ الصَّلاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُواْ وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاء والضَّرَّاء وَحِينَ الْبَأْسِ أُولَئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَـئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ البقره آ:۱۷۷ ) نیک عمل یوازې دا نه دی چه خپل مخونه د مشرق او مغرب خوا ته واړوئ. لویه نیکي د هغه چا نیکي ده چه په خدای او د قیامت په ورځ، په ملکو، په کتابونو او په پیغمبرانو ایمان راوړي او مال ورکوي سره له

دې چه ورته ګران وي خپلوانو ته يتيمانو ته محتاجو ته، مسافرو او سوالګرو ته او لګوي ئې دغاړو په ازادولو کښې او مونځ کوي. زکات ورکوي او پخپل عهد وفا کوي کله چه عهد وکړي(او خاص ګرزوو ) صبر کوونکی په سختيو ، کړاوونو او په جنګ کښې. داډله هماغه کسان دي چه صادقان دي په دين کښې او هم دوی دي متقيان. په دې آيت کښې پس له ايمانه اول مال ورکول خپلوانو ، يتيمانو ، مسکينانو ،پرديسيانو ، سوالګرو ته او دغلامانو دازادولو دپاره نيک کار ګڼل شوی او پس له هغه مونځ او زکات.

د لته د زکات ذکر دابښيي چه يوازې د زکات ورکړه کافی نه ده بايد سربيره په زکات نور مال هم په خيريه چارو کښې دحاجت خاوندانو ته ورکړ شي. وفا په عهد او په شدايدو کښې صبر او ثبات هم داصلي نيکۍ مهمه برخه ده.

رښتيانی ايمان او اسلام له خدای اورسول او له فی سبيل الله جهاد سره داسې ټينګه مينه غواړي چه نورې مينې ئې په مقابل کښې دوجود اظهار ونکړی شي ځکه الله تعالی فرمائي:

(قُلْ إِن كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ اللّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُواْ حَتَّى يَأْتِيَ اللّهُ بِأَمْرِهِ التوبه آ:۲۴ ) ووايه ! (ای محمده )که دي ستاسو پلرونه، ستاسو زامن، ستاسو وروڼه، ستاسو ميرمنې، ستاسو خپلوان او هغه مالونه چه پيدا کړي مو دي او هغه تجارت چه دبازار له سړيدو څخه ئې په ويره کښې ياست او هغه استوګنځي چه خوښ مو دي له پاک الله له رسول الله او له فی سبيل الله جهاد څخه زيات محبوب، نو بيا دخدای عذاب ته سترګې په لاره اوسئ. په دې آيت کښې هغه ټول شيان چه انسان ورسره ډيره مينه لري او په هر چا له هرڅه نه ګران دي ياد شويدي او بيا ويل شوي که ددغو ټولو په مقابل کښې دخدای، درسول اوفی سبيل الله جهاد پله درنه نوي دالهي عذاب مستحق ياست او دغه راز ايمان هغه ايمان نه دی چه دفلاح موجب ګرزي.

تش په ژبه ايمان څه ايمان نه دی بلکه ايمان يوه راسخه عقيده ده چه له زړه سره نه شکېدونکی تعلق لري.

قرآن پخپله دايمان په باب وائي: (قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ –الحجرات آ:۱۴ ) باديه نشينو عربو وويل چه ايمان مو راوړی. ووايه (ورته )ايمان مو نه دی راوړی ليکن ووائئ منقاد شوي يو حال دا چه ايمان مو زړونو ته نه دی ننوتی.

هغه ايمان چه زړونو ئې مزه ليدلې ده له هرڅه نه خوږدی او دغه ايمان هرڅه کولی شي. ايمان بايد کامل وي ناقص او نيمګړی ايمان څه ګټه نلري. الله تعالی فرمايي:

(أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَاء مَن يَفْعَلُ ذَلِكَ مِنكُمْ إِلاَّ خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَى أَشَدِّ الْعَذَابِ البقره آ:۸۵ ) آيا ايمان راوړئ دکتاب په يوه برخه او په بله برخه کافر کېږئ څوک چه له تاسو څخه دغسې کوي د هغه جزا نه ده مګر رسوايي ده ددنيا په ژوند کښې او دقيامت په ورځ به سخت ترين عذاب ته ورګرزول کېږي. دا ځکه چه ايمان تجزيه نه قبلوي او دخدای کتاب داسې نه دی چه څوک به ترېنه څه اخلي او څه به ردوي. دخدای امر همدغه دی چه وايي:

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ ادْخُلُواْ فِي السِّلْمِ كَآفَّة –البقره آ:۲۰۸ ) ای مومنانو ننوزئ په ټول اسلام کښې. ننوتل دانه دي چه سړی يوه پښه له دروازې نه دننه کړي او نور دباندې ولاړ وي.

اسلام ډېر احکام لري د اسلام شرعي احکام چه د خدای له لوري نازل شويدي عملي تطبيق غواړي او تعميل ئې حتمی دی.

په اسلامی هيوادونو کښې که اسلامي شريعت جاري نه وي او د خدای داحکامو خلاف فيصلې او اجراآت کېږي دغسې نظام ته اسلامي نظام نشو ويلی.

په اسلام کښې دخدای له حکمه مخالف حکم دچلیدونه دی، اصلي حکومت دخدای حکومت دی داسلام زعما مداران دخدای داحکامو چلوونکي او تطبیقوونکي دي. الله پاک خپل پیغمبرته وایي:(فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللّهُ -المایده آ:۴۸ ) نو حکم وکړه د دوی تر منځ په هغه څه چه خدای نازل کړیدي، په بل آیت کښې وائي:(وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللّهُ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ- المایده آ:۴۴ ) اوهر څوک چه حکم ونکړي دهغه څه موافق چه خدای نازل کړیدی نو دغه گروه همدوی دي کافران.

اسلام له مومن اومسلمان څخه شجاعت او بهادري غواړي چه بې دخدای له ویرې بله ویره باید په زړه کښې ونلري اوبې زړه سړی کامل مسلمان کیدی نشي دخدای په اوامرو او مناهیو کښې دا امر او نهی هم شته چه وایي:(فَلاَ تَخْشَوُالناس وَاخْشَوْنِ، فَلاَ تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ -المایده آ:۳ او۴۴ ) نو مه ډاریږئ له خلکو نه او وډارشئ له ما څخه یوازې له خدای څخه ډاریدل اوله خلکو څخه نه ویریدل د اسلامی احکامو په تعمیل کښې ډېر زیات دخل لري.

دمثال په ډول دعدالت قایمول هغه گران کاردی چه کله د اشخاصو اوکله دیوه قوم ددښمنۍ باعث گرزي اویوډارن ویرندونکی سړی نشي کولی چه په دغسې مواردو کښې عدالت وچلوي. په دغسې مورد کښې هغه څوک چه له خلکو ډاریږي یاله خدایه نه ډاریږي په دواړو حالو کښې دعدالت له قیام څخه ډده کوي او څوک چه هم له خلکو ډاریږي او هم له خدایه نه ډاریږي هغه خو هېڅکله ددغه کارجوگه نه وي. په قرآن کریم کښې چه د عدل کولو او دبی عدالتۍ دمخنیوي په باب ډېر تاکید شوی دا هم ویل شوي دي:(وَلاَ يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلاَّ تَعْدِلُواْ اعْدِلُواْ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى المائده آ:۸ ) اوباعث دي نکړي تاسې دقوم دښمني په دې چه انصاف ونکړئ، عدل وکړئ، عدل زیات نږدې دی تقوی ته. په یوه بل آیت کښې وایي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُونُواْ قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاء لِلّهِ وَلَوْ عَلَى أَنفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالأَقْرَبِينَ إِن يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقَيرًا فَاللّهُ أَوْلَى بِهِمَا فَلاَ تَتَّبِعُواْ الْهَوَى أَن تَعْدِلُواْ-النساء آ:۱۳۵ ) ای مومنانو اوسئ استوار په انصاف، شهادت ورکوونکي دخدای دپاره که څه هم ستاسو په ضرروي یاستاسي دمورو پلار اوخپلوانو په ضرروي، غني وي که فقیر خدای په دوی زیات مهربان دی، پیروي مه کوئ دنفسي هوا په عدالت کښې.

عدالت قایمول طبعاً له ظلم سره مقابله او مجادله غواړي او مومن ته دا اجازه نه ورکوي چه پخپله مظلوم واقع شي یابل مسلمان دمظلومیت په حال کښې ووینې اوبې تفاوته پاتې شي. رسول الله(ص) وایي:(اِنَّ اَعظَمَ الجِهَادِ عِندَ اللهِ كَلِمَةُ عَدلٍ عِندَ اِمَامٍ جَايِرٍ ابوداؤد-ترمذي) لوی جهاد دخدای په نزد دعدل کلمه ده د ظالم امام په مخکښې. د اسلام ټول واجبات بیانول او اسلامی تربیه او اخلاق په تفصیل سره ښودل په دغه مختصربحث کښې نه ځاېږي. دلته همدومره یادونه بس ده چه اسلام دمسلمانانو په ژوندانه، په اقتصادي، اجتماعي او سیاسي لحاظ حاکمیت لري چه دغه حاکمیت په تشریعي برخه کښې دقانون په حیث کامل تطبیق غواړي. له بلی خوا اسلام دتهذیب النفس او روحي تزکیې په لحاظ په ثقافت او کلتور کښې ژورې ریښې لري چه دفرد او جامعې په جوړښت کښې ئې اخلاقي او تربیوي اغیزې څرگندې دي.

اوس چه داسلام ماهیت اوحقیقت په کلي او اجمال ډول څه نه څه وښودل شو نو وبه گورو چه اسلام څنگه جامعه جوړه کړه؟ اوڅنگه افراد ئې جوړ کړه؟ په دغو دواړو برخو کښې د اسلام حقیقت نورهم ښه څرگندېږي او د اسلام پېژندنې په باب ښه مرسته کوي.

# اسلامي جامعه جوړول

کله چه حضرت محمد مصطفیٰ (ص) په مکه مکرمه کښې خپل رسالت د اسلام په تبلیغ شروع کاوه عرب په مختلفو قبایلو او عشایرو ویشل شوي و او مختلف عقاید ئي درلوده یعني له قبیلوي تعصبونو او دښمنیو سره ئي په افکارو او معتقداتو کښې هم تشتت او اختلافونه موجود و.

ځینې په دې عقیده وچه نه خدای شته او نه پس له مرګه ژوند. ژوند همدغه دی چه په دنیا کښې دی او مرګ د دهر او زماني کار دی. قرآن کریم د دغو کسانو دغه عقیده په دې ډول بیانوي:

(وَقَالُوا مَا هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا يُهْلِكُنَا إِلَّا الدَّهْرُ –الجاثية آ:۲۴) ځینې نور د خدای په وجود قایل وو مګر پس له مرګه ژوند ته نه و قایل. نور خلک د بتانو بندګان و او هرې قبیلې د ځان د پاره بیل بت په خدائي منلی ؤ.

(ود) د کلب د قبیلې (سواع) د هذیل (یغوث) د مذحج او یمنی قبایلو (نسر) د ذی الکلاع (یعوق) د همدان (لات) د ثقیف (عزی) د قریشو او بنی کنانه (منات) د اوس او خزرج د قبیلو خدایان و. او تر دغو ټولو بتانو لوی بت (هبل) و.

سربېره په دې ځینې خلک یهودیت ته، ځینې نصرانیت ته قایل و، چا د ملکو بندګي کوله او چا د پېریانو.

اخلاق او عادات په ډېر منحط حال کښې و، ښځو ته په انساني ارزښت نه و قایل، لوڼې به ئې ژوندۍ ښخولې، غلامان د حیواناتو په څیر ګڼل کیده، فحشاء، ربا، ظلم او ناروا څه حدود نه درلوده قبیلوي افتخار، نسبي غرور او خرافات پرستۍ په اذهانو تسلط درلود.

په دغسې حال کښې له دغسې شرایطو لاندې چه نه نظم و او نه آئین نه یو ملي حکومت و، نه سیاسي او اجتماعي سازمانونه، له دغسې خلکو نه یو امت جوړول څه اسانه او ارزانه کار نه و.

د اسلامي جامعې اساس په مدینهٔ منوره کښې کېښودل شو او دغه جامعه له مهاجرو او انصارو څخه جوړه شوه یعنې یو جزء خواران او فقیران او بل جز ئې شتمن او بډایان و چه په آغاز کښې ئې طبقاتي تضاد موجود و خو دغه تضاد د اسلام تحت الشعاع واقع شو او مینه په هر څه غالبه شوه.

د مکې مسلمانانو د اسلام د پاره خپل کورونه او مالونه په مکه کښې پرېښودل، له خپلو ډېرو نږدې عزیزانو څخه جلا شوه او مدینې ته د بیوزلو پردیسیانو په حیث راغله. انصارو دوی ته د اسلامی جذبې په تقاضا په ډېره مینه کورونه او ځایونه ورکړه او په دوی باندی ئې پیرزوینه ډېره زیاته وه.

مهاجرین فقیران و او مدینې ته د پردیسیانو په حیث راغله، انصار چه د مدینې اصلي او سیدونکي او شتمن خلک و، دوی ته ئې په خپلو کورونو کښې ځای ورکړ او خپله شتمني ئې ورسره شریکه کړه حتی چه د انصارو یوه تن یوه مهاجر ته وویل: زه دوه میرمنې لرم هره یوه چه ستا خوښه شي هغه به طلاقه کړم چه ته ئې په نکاح واخلې.

د مهاجرینو هغه فداکاري چه د اسلام د دین د پاره ئې خپل هر څه د مکې قریشو ته پرېښوده او دوی یو سر او دوه غوږه مدینې ته راغله او د انصارو دغه ایثار چه د اسلام په جذبه ئې مهاجرینو سره هر راز مادي او معنوي مرستې وکړې په بل عبارت د شتمنو او نیستمنو دغه راز ائتلاف او دیوې جامعې تشکیل د نن ورځې د اقتصادي ګټو او طبقاتي تضاد په منطق نه برابرېږي.

دا جامعه په اسلامي اخوت او مشترکه عقیده بنا وه او د (انما المؤمنون اخوة) په اساس رسول الله (ص) د مهاجرو او انصارو ترمنځ د ورورولۍ تړونونه قایم کړه. په دې ورورولۍ کښې عرب او عجم، غلام او بادار، تور او سپین فرق نه درلود او د منافعو تصادم پکښې څه د رزنښو اچولی.

د انصارو ایثار په قرآن کریم کښې داسې ستایل شوی دی.

(يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ ولايَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ الحشر آ:٩ )يعني دوى محبوب او عزيزګڼي هغه چه دوى ته هجرت کوي او څه چه مهاجروته ورکول کيږي انصار پخپلو زړونو کښې څه حسد نه حس کوي، له ځانه نورمقدم او غوره ګڼي که څه هم دوى پخپله محتاج او اړ وي.
دا آيت هغه حال بيانوى چه د پرمالونه د (فئي)په صورت يعني بې جنګه د رسول الله (ص) لاس ته ورغله او هغه ئې ټول په مهاجرو وويشل او دانصار دوو تنوته يکښې برخه ورکړه شوه چه هغوى څه نلرل او نور ټول انصار بې برخې پاتې شوه.
دغه ويشنه په دې لحاظ وه چه دمهاجرو او انصارو ترمنځ څه نه څه مالي موازنه اوتسويه مراعات شي مګر بيائې هم انصاروکښې څه رخه پيدا نکړه او دمهاجروحق ئې مقدم وګاڼه.
هغه مثالي جامعه چه اسلام د حضرت محمد (ص) له وخته د حضرت عمر (رض) دوهم خليفه ترشهادته او وروسته تر هغه هم کله کله دنيا ته وړاندې کړه يوه داسې جامعه وه چه سياسې قدرت پکښې بې کبره اوبې غروره دډېرصالح خدمتګارپه حيث استعمال شو او عدالت، تقوى، مساوات، حريت، قناعت او په نفس حاکميت ئې هغه ښکاره خصوصيتونه او مميزات وچه نظيرئې بيا چاونه ليد.
د اسلامي جامعې په جوړولو کښې جهاني او عالمي نظر دخيل و او دمحيط وماحول له سطحې نه ئې مقام ډېر او چت و. په داسې حال کښې چه عربو قبيلوي ژوند درلود او ملي قدرت لا نه و متشکل شوى حضرت محمد (ص) دقرآن په لارښوونه دقوميت او وطنيت له ساحې نه بهرخپل رسالت دټولو خلکو او عالميانو دپاره وګاڼه او په عربو پورې محصورپاتې نشو. دقرآن کريم داآيتونه:
(وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ- سوره انبيا آ:١٠٧) (وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا —سبا آ:٢٨)
(وَأَرْسَلْنَاكَ لِلنَّاسِ رَسُولاً وَكَفَى بِاللّهِ شَهِيدًا -النساء آ:٧٩) دامطلب په صراحت ثابتوي چه اسلام ددين په حيث او ديوه اجتماعي نظام په حيث ډېر وسيع نظر درلود او تعلق ئې له بشريت سره وځکه دمومنين يامسلمين په ځاى د (عالمين) کلمه او د (ناس) کلمه استعمال شوه او (کَافَةً لِلنَاسِ) وويل شوه په همدغه اساس ئې په مطلق ډول بني آدم دکرامت خاوند وګاڼه او د (وَلَقَد کَرَمنَابَني آدَمَ )اعلاميه ئې خپره کړه چه په هغه زمانه او په هغسې محيط کښې ئې توقع نشوه کيدى.
په دغه اسلامي جامعه کښې هغه مقام او منزلت چه زيدبن حارثه، اسامة بن زيد، بلال حبشي، صهيب رومي، سلمان فارسي او نورو عجمو او مواليو درلود، ددې مترقي عصر په غربي او شرقي ديموکراسى کښې ئې مثال نشو موندلى.مونږ وينو اوګوروچه يو زر او څوسوه کاله وروسته په امريکاغوندې هيواد کښې تورپوستکي په څه نظر کتل کيږي.
په نبوي احاديثوکښې دبشر دوستى اوبشرپالنې درسونه ډېر موندلى شو چه هلته دمومنانو يا مسلمانانو په ځاى (ناس) ويل شويدى چه په خلک ئې ترجمه کولى شو.
مثلا:(خَيرُ النّاسِ مَن يّنفَعُ النّاسَ) خلک په دې پوهوي چه په خلکوکښې بهتر هغه څوک دى چه خلکوته ئې خير اوګټه رسيږي. په بل حديث شريف کښې راغلي دى:(اَلنّاسُ عَيَالُ اللهِ وَ اَحسَنُ النّاسِ اِلى اللهِ اَحسَنُهُم اِلىٰ عَيَالِهِ) يعني خلک د خداى عيال دي، دخداى په نزد بهترين خلک هغه دي چه د خداى دعيال سره نيکي کوي.
په بل ځاى کښې پيغمبر(ص) خلکوته داسې خطا ب کوي:(اَيُهَا النّاسُ اِنَ رَبَكُم وَاحِدٌ وَ اِنَ اَبَاكُم وَاحِدٌ كُلُكُم مِن آدَمِ وَآدَمُ مِن تُرَابِ اِنّ اَكرَمَكُم عِندَ اللهِ اَتقَاكُم لَا فَضلَ لِعَرَبِي عَلىٰ عَجَمِيٍ وَ لَا لَابَيَضَ عَلىٰ اَسوَدَ اَلَا بِالتَقوىٰ) اى خلکو خداى مو يودى پلارمو يودى ټول له آدم څخه ياست او آدام له خاورو څخه دى دخداى په نزد ستاسو ډېر مکرم هغه دى چه ډېرپرهيزګار دى، عربي په عجمي او سپين په تور څه فضليت نلري مګرپه تقوىٰ سره.

## طبقاتي جامعه د اسلام په نظر کښې:

په کومه جامعه کښې چه ممتازه طبقه موجوده وي او يو شمير خلک په نوروباندی باداري کوي هغې ته طبقاتي جامعه وائي چه اقليت پکښې داکثريت په اوږو باروي.
استعمار او استثمار په همدغسې ټولنه کښې وده کوي او ډېرخلک دلږو دپاره استعمالېږي او قربانېږي.
يو وخت وچه قوي انسان په وحشيانه ډول دضعيف انسان غوښې خوړې او اوس ئې لاهم وحشيان په همدغه ډول خوري مگر په متمدنو قومونو کښې سړي خورگي اوس په بل ډول ده او هغه داچه بډايان او دقدرت خاوندان ډېرخلک پخپل خدمت کښې په کاراچوي او دهغوی دکار اوزيار په کټه چړچې کوي خو هغوي ته ډېر لږ څه ورکوي چه ددوی خدمت ته ژوندي پاتې شي.
دغه لوړه او ممتازه طبقه چه دملاکانو ، بډايانو ، سردارانو ، خانانو ياصاحبانو په نامه يادېږي او فئوډالان ئې عصري نوم دی ددې عصر په ډېروجوامعو کښې دحاکمې طبقې په حيث په خلکو مسلط دي دا طبقه خلک په قرآن کريم کښې(مترفين) ، (ملاء)، (اکابر) بلل شويدي او په متعددو آيتونو کښې ئې يادونه په دې ډول شويده:
۱-(وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُم بِهِ كَافِرُونَ -سبا آ:۳۴) يعنې هرې قريې ته موچه استازې ليږلې بډايانو او دنعمت خاوندانوئې ويلي دي څه چه تاسو راوړيدي نه ئې منو. په دې آيت شريف کښې الله تعالی حضرت محمد(ص) په دې پوهوي چه دقريشو دسردارانو اوشتمنو په سرکشۍ او نافرمانۍ مه خوابدی کېږه په هروخت کښې مالداراو او متنعمانوله پيغمبرانو سره مقابله کړيده او دخدای احکاموته ئې غاړه نده ايښې.
۲(وَكَذَلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءنَا عَلَى أُمَّةٍ وَإِنَّا عَلَى آثَارِهِم مُّقْتَدُونَ -الزخرف آ:۲۳) مطلب داچه ترتادمخه هم دهرې قريې شتمنو اوآسوده حالوکسانو دخدای هراستازي ته همدغه ويلي دي چه مونږ دپلرو او نيکونو زړه لار نه پرېږدو او په تاپسې نه ځو.
۳-(وَقَالَ الْمَلأُ مِن قَوْمِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِلِقَاء الْآخِرَةِ وَأَتْرَفْنَاهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا مَا هَذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يَأْكُلُ مِمَّا تَأْكُلُونَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُونَ -المومنون آ:۳۳) دلته دهود ياصالح (ع) دقوم سرداران او مالداران په گوته شويدي چه په آخرت ئې باورنه درلود او په کفر ټينگ دآسوده ژوند خاوندان و او قوم ته ئې ويل: دی هم تاسو غوندې بشردی هغه څه خوري چه تاسو ئې خورئ او هغه څه څکي چه تاسو ئې څکئ.
۴_(وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا فَتِلْكَ مَسَاكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَن مِّن بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا -القصص آ:۵۸) ډېرخلک موتباه کړيده قريه چه په معيشت کښې ئې له حده تيرى کړی نو دا دي ددوی استوگنځي چه وروسته تردوی پکښې څوک نه او سېږي مگر ډېر لږ کسان.
يعنې عياشي او په عيش کښې افراط دتباهۍ موجب دی.
۵-(قَالَ الْمَلأُ مِن قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي ضَلاَلٍ مُّبِينٍ -الاعراف آ:۶۰) نوح عليه السلام ته ئې دقوم سردارانو اوسرکردگانو وويل: مونږ تا په ښکاره ضلالت کښې وينو.
۶_(قَالَ الْمَلأُ الَّذِينَ كَفَرُواْ مِن قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وِإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ -الاعراف آ:۶۶) هودعليه السلام ته ئې دقوم کافرو سردارانو وويل: مونږ هرگوره تا په سفاهت کښې وينو او د دروغجنوله جملې څخه دې گڼو.
۷-(قَالَ الْمَلأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُواْ مِن قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُواْ لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَالِحًا مُّرْسَلٌ مِّن رَّبِّهِ قَالُواْ إِنَّا بِمَا أُرْسِلَ بِهِ مُؤْمِنُونَ. قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُواْ إِنَّا بِالَّذِيَ آمَنتُمْ بِهِ كَافِرُونَ -الاعراف آ: ۷۵ او ۷۶) دصالح عليه السلام دقوم سرکښو اشرافو دقوم ضعيفو مومنانو ته وويل: اياتا سو پوهېږئ چې صالح عليه السلام دخپل خدای استازی

دی، هغوی وویل مونږ هرګوره دده په رسالت ایمان لرو متکبرانو وویل مونږ په ټینګه دهغه څخه منکر یو چه تاسې پرې ایمان لرئ.
۸-(قَالَ الْمَلأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُواْ مِن قَوْمِهِ لَنُخْرِجَنَّكَ يَا شُعَيْبُ وَالَّذِينَ آمَنُواْ مَعَكَ مِن قَرْيَتِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا-الاعراف آ:۸۸) دشعیب علیه السلام دقوم متکبرو سردارانو وویل: اې شعیبه هرګوره به تا او هغه کسان چه په تا ئې ایمان راوړی له قریې څخه باسو یا به بیرته زمونږ دین ته راګرځئ.
۹-( وَقَالَ الْمَلأُ مِن قَوْمِ فِرْعَونَ أَتَذَرُ مُوسَى وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُواْ فِي الأَرْضِ وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ-الاعراف آ:۱۲۷) دفرعون د قوم سردارانو فرعون ته وویل: ایا موسی او دده قوم پرېږدي چه په ځمکه کښې فسادونه کوي او ستا عبادت او ستا دبتانو عبادت پرېږدي.
۱۰-(وَكَذَلِكَ جَعَلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجَرِمِيهَا لِيَمْكُرُواْ فِيهَا وَمَا يَمْكُرُونَ إِلاَّ بِأَنفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُونَ-الانعام آ:۱۲۳) په دې آیت کښې د (ملا) کلمه په (اکابر) بدله شویده چه دواړه یوه معنی لري.
الله تعالی وایي په هره قریه کښې مو اکابر مجرمان پیدا کړیدي چه پکښې مکر او امکاري کوي. ددوی مکر په حقیقت کښې له ځان سره دی مګر دوی نه پوهېږي.
له دغو او دغسې نورو آیتونو څخه دا حقیقت ډېر ښه څرګندېږي چه دقرآن په نظر کښې چه د اسلام نظر هم دی اکابر، سرداران او بډایان خومره منفوردي.
ځوک چه دقرآن په اقتضا او تقاضا پوه وي هغه پوهېږي چه په اسلامي جامعه کښې دممتازي طبقې دپاره ځای نشته. په اسلام کښې هغه بډای او مالدار ته هرکلی وایه شي چه تجارت او معامله ئې له خدای سره وي لکه چه په خپله خدای (ج) وایي:(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ -الصف آ:۱۰ او ۱۱) اې مومنانو! ایا دلالت وکړم تاسو ته په داسې تجارت چه نجات درکړي له دردناک عذاب څخه، ایمان راوړئ په خدای او رسول ئې او جهاد وکړئ دخدای په لار کښې په خپلو مالونو او نفسونو دا ستاسو دپاره خیردی که پوه شئ. له خدای سره معامله او تجارت له سراو ماله تېربدل دي ددې تجارت سند داسې ثبت شویدی:
(إِنَّ اللّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الجَنَّةَ -التوبه آ:۱۱۱) بې شکه الله تعالی پیرودلي دي له مومنانو څخه ددوی نفسونه او مالونه په دې چه ددوی دپاره به جنت وي نو هرکله چه ددوی سر او مال دخدای مال دی بډایان ددې معاملې په اساس مکلف دي چه دخدای په حکم به وړی مړوي. لوځ به پټوي او ضعیفان به قوي کوي او په پښو به ئې دروي.
هغه بډایان چه دغه کارنکوي اسلام ئې ردوي او له ځانه ئې شړي لکه ثعلبه چه قصه ئې په قرآن کښې پدی ډول ده:(وَمِنْهُم مَّنْ عَاهَدَ اللّهَ لَئِنْ آتَانَا مِن فَضْلِهِ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُونَنَّ مِنَ الصَّالِحِينَ فَلَمَّا آتَاهُم مِّن فَضْلِهِ بَخِلُواْ بِهِ وَتَوَلَّواْ وَّهُم مُّعْرِضُونَ -التوبه آ:۷۵) له دوی څخه دي هغه ځوک چه خدای سره ئې عهد کړی وچه که راکړشي مال هرګوره به ئې صدقه کوو او یو به له نیکانو څخه. کله چې دوی ته خدای له خپل فضل څخه ورکړه بخل ئې وکړاو له عهده وګرځېدل او دوی دي اعراض کوونکي.
تفسیر:
ثعلبه دحاطب انصاري ځوی پیغمبر (ص) ته عرض وکړ چه د بډای کیدو دعا ورته وکړي پیغمبر (ص) که هر څه ورته وویل چه همدغه حال درته ښه دی هغه خپله غوښتنه بیابیا کوله حضرت محمد(ص) بیاورته وویل ایا دادې نه ده خوښه چه زما دقدم نقش تعقیب کړې او په هغه څه پسې هڅه و نکړې چه شکرئې نشې په ځای کولی. ثعلبه بیا اصرار وکړاو عهدئې وکړ چه که خدای ئې بډای کړي حقوق به ئې په کامل ډول اداکړي. پس له هغه ورته پیغمبر دعا

وکړه او دثعلبه په اوزوکښې دومره برکت پیدا شو چه مجبور شو دمدینې نه دباندې کلي ته ووزي دثعلبه په اوزو او مال کښې نورهم دومره زیات والی راغی چه دجمع او جمعی لمونځ ترې پاتې شو او مال ته ئې مخه شوه.
څه موده وروسته چه دپیغمبر (ص) لخوا د زکات غونډولو عاملین ورغله بالاخره ئې د زکات له ورکولو نه انکار وکړ او دغه خبر رسول الله (ص) ته راورسیده چه درې ځله ئې وویل (ویح ثعلبه) افسوس دی د ثعلبه په حال او داآیتونه هم د همده په باب نازل شول. دثعلبه خپلوانو چه دغه خبر ثعلبه ته وروو رهغه په اکراه سره د پیغمبر (ص) حضور ته دزکات له مال سره راغی خو پیغمبر دهغه زکات قبول نکړ او ثعلبه دشرم او عار په وجه آه وفریاد شروع کړ او په سرئې خاورې باد کړې خودا هرڅه دظاهري بدنامی دپاره و او په زړه کښې ئې نفاق پټ و ځکه چه ده زکات لکه جزیه ګڼله.
وروسته دپیغمبر (ص) له وفاته ثعلبه چه دزکات مال ابوبکر صدیق (رض) ته راوړ هغه هم رد کړ او وروسته ترهغه عمر فاروق (رض) هم دهغه زکات مردود وګاڼه او دغه راز بډای له اسلامي جامعې نه طرد شو.
په اسلام کښې که په صریح ډول طبقاتي تیټ وپاس په همدغه نامه نه وي ردشوي په اقتضائې ډول ئې په دې آیتونو کښې دغه راز نظام غندلی او ردکړیدی.
(إِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْأَرْضِ وَجَعَلَ أَهْلَهَا شِيَعًا يَسْتَضْعِفُ طَائِفَةً مِّنْهُمْ يُذَبِّحُ أَبْنَاءهُمْ وَيَسْتَحْيِي نِسَاءهُمْ إِنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُفْسِدِينَ وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِي فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ- القصص آ:۴ ) هرګوره فرعون تکبر وکړ په ځمکه کښې او وئې ګرزاوه دځمکې اهل طایفې طایفې چه ضعیفه ئې کړه یوه طایفه ترېنه وژل ئې دهغوي زامن او ژوندی ئې پرېښودې دهغوی لونې، هرګوره ؤ دی له مفسدانو څخه. غوښتل موچه احسان کېږدو په ضعیفانو باندې په ځمکه کښې او وګرزوو دوی پیشوایان او وګرزوو دوي وارثان (دفرعون دملک ) اوځای ورکړو دوی ته په ځمکه کښې او وښیو فرعون اوهامان ته اودوی لښکروته دبني اسرائیلو له لاسه هغه عذاب چه فرعونیان ترېنه وېرېدل.
داآیتونه دا راښیي چه خدای دانه خوښوي چه څوک خلک طایفي طائفې کړي او یوه ضعیفه او ذلیله کړي لکه فرعون چه بنی اسرائیل همدغه شان کړه اوخدای ورته موسی پیدا کړ. که څوک یوه طایفه ټیټوی اولاندې کوي ئې او نور لوړوي نوالهی سنت هغه ضعیفان قوي کوي او لوړه ممتازه طبقه پرې تباه کوي. په همدغه اساس په صدر اسلام کښې دحضرت عثمان (رض) ترخلافته په اسلامي جامعه کښې طبقاتي ټیټ اوپاس نه و او اواسلامي سیاست داجتماعي عدالت اومساوات په بناء دبرتری اوکهتری احساس محوه کړی ؤ.
که چیرې اوس هم اسلامي اصول اواساسونه په یوه جامعه کښې تطبیق شي د طبقاتي تضاد دپاره مجال نه پیدا کېږي. په اسلام کښې حاکمه طبقه هم په خلکو حاکمه نه وه بلکه دخدای د احکامو مجریه قوه وه. د اسلام خلیفه دربان اوپاسبان نه درلود نه دربار و نه درباري جاه وجلال. نا اشنا سړی دظواهرو له مخې دخلیفه اودبل سړي فرق نشو کولی، بشري تاریخ د اسلامي خلافت نظیر په بل هیڅ نظام کښې نشي ښودلی.
عمرابن الخطاب (رض) خوپرېږده دهغه ثاني عمرابن العزیز هم ثاني نلري. دحضرت ابوبکر (رض) اوحضرت علي کرم الله وجهه حال خوهم هر چاته معلوم دی چه اجتماعي اقتدار یې لکه یوستر امانت وګاڼه او هیڅکله ئې دخپل شخصي اونفسي خواهشاتو دپاره استعمال نکړ او زعامت ئې دمثل اعلی په حیث راتلونکو زمانو ته تاریخي یادګار پرېښود.
هغه اسلامي جامعه چه حضرت محمد (ص) ئې باني اومعمار و اوخپلو خلیفه ګانو ته ئې دامانت په ډول پرېښوده اساسونه ئې دادي:

## مساوات:

داسلام په اجتماعي اصولو کښې یو مهم اصل مساوات دی ځکه ئې عرب اوعجم تور اوسپین مساوي ګڼلی او انساني کرامت ئې دهربني ادم دپاره یو شان منلی دی.

څه شی چه په دغه کرامت کښې زياتوالی راولي هغه تقوی ده او بس. د اسلام لوی رهبر حضرت محمد (ص) دوه ځله يو ځل په سوره کهف (آ:۱۱۰ ) او بل ځل په سوره فصلت (آ:۶ ) کښې د خدای له لوري مامور شوی چه خلکو ته ووايي: (انما أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ ) زه هرګوره تاسو غوندې بشريم وحی راته راځي. يعني بې له دې نه چه د الهي وحی په وسيله مې معرفت نصيب کېږي نورنو تاسو غوندې يو بشريم او له تاسو نه امتياز نلرم.

په همدغه اساس به پيغمبر (ص) په هغو مواردو کښې چه وحی به نه وه موجوده د خپلو اصحابو رايه غوښتله او خپله رايه به ئې هم ښکاره کوله که دده رايه به په اقليت کښې وه د هغوی په رايه به ئې عمل کاوه او خپلې رائې ته د يوه فرد له رائې نه په زيات اهميت نه و قايل.

په عمل کښې هم رسول الله (ص) په دسته جمعي چارو کښې له نورو سره مساوي برخه اخيسته که مسجد به ئې جوړاوه خپلو اصحابو سره به ئې تيږې او خاورې راچلولې که د غزا د پاره به ئې خندق کينوده د هغوی په شان به ئې کلنګ واهه او خاورې به ئې ايستلې، په غزاګانو کښې به ئې عملاً برخه اخيسته او د جنګ په ميدان کښې له هرچانه زيات صابر و.

له شاقه خدماتو نه ئې ډډه نه کوله او په معيشت کښې ئې برخه له نورونه خواره وه، خپل نفس ئې ډېر خوار ساته تن اسائې ئې په ځان حرامه کړې وه. په داسې فرش به ښملاسته چه تغمې به ئې دده په مبارک وجود کښې ښکندې وې. د ابريشو په ډوډۍ به ئې هم نس نه مړاوه او د ډېرلږ وخت د پاره به ئې هم په کور کښې د دنيا مال دومره نه ساته چه موقتاً په بډايانو کښې حساب شي.

د غنيمت او د (فئې ) مالونه به ئې په خلکو ويشل او د برخه به ئې يو اوبل ته ورکول خو په خپله به ئې شپه په لوږه تيروله يعني په دغه برخه کښې ځانته په مساوي حق هم نه و قايل.

په دنيا کښې به هيڅ داسې مشر يا رهبر نه وي تېرشوی چه خپلو پيروانو سره په هر کار کښې ديوه کارګر په حيث عملاً شريک او سهيم وي او د مالونو په ويش کښې بې برخې يا د ډېرې لږې برخې خاوند وي.

د رسول الله (ص) دغه رويه او دده نور اخلاق او صفات په تربيوي ډول دومره موثر و چه دده په اصحابو کښې ئې ترډېره وخته عميق روحي نفوذ مشهود و.

ترده ډېر وروسته د اسلام د دوهم خليفه حضرت عمر (رض) په خلافت کښې ديوه يهودي دعوی په حضرت على کرم الله وجهه باندې خليفه ته وړاندی شوه هغه حضرت علي احضار کړ او د يهودي په څنګ کښې ئې د فيصلې د پاره ودراوه ځکه چه په اسلام کښې د مساوات او عدالت تقاضا همدغه وه چه مدعي او مدعي عليه مساوي وګڼل شي او څنګ په څنګ ودرېږي که څه هم يو حضرت علي د حضرت محمد (ص) د تره ځوی او ځوم وي او د اسلام د پاره ډېر زيات خدمتونه کړي وي او بل يهودي وي چه له اسلام سره ټينګ عناد لري.

کله چه حضرت عمر (رض) له يهودي سره خبرې کولې د يهودي اصلی نوم ئې واخيست او چه حضرت على کرم الله وجهه ته ئې خطاب کاوه نو د ابو الحسن په نامه ئې ياد کړ په دغه وخت کښې د حضرت علي په وچولي کښې د غضب آثار وليدل شوه ځکه حضرت عمر (رض) ورته وويل:

په دې خوابدی ئې چه د عدالت په محضر کښې له يوه يهودي سره په مساوې ډول ولاړ ئې. حضرت على کرم الله وجهه وويل:

نه داسې نه ده بلکه په دې وجه متاثريم چه د مساوات د اصل رعايت دې ونکړ زه دې په کنيه نامه ابو الحسن يعنې د حسن پلار وبللم او يهودي دې په خپل نامه ياد کړ يعنې زما احترام دې له هغه نه زيات وکړ. حضرت عمر (رض) په ځواب کښې ورته وويل: دا کار د عادت له مخې شويدی تاته معلومه ده چه ما هميشه ته د ابو الحسن په نامه ياد کړی ئې او اوس هم ستا همدغه نوم عادتاً خولی ته راغی زما قصد دا نه و چه د مساوات اصل له پښولاندې کړم. پس له هغه حضرت على کرم الله وجهه متسلی شو.

د رسول الله (ص) په زمانه کښې چه قريشو ځانونه له نورونه ډېر پورته ګڼل او مريان او موالي ئې ډېر حقير او ذليل ګڼل رسول الله (ص) د خپلې عمې لور (زينت بنت جحش ) زيد بن حارثه ته په نکاح کړه چه دده له مواليو څخه و او په جزيرة

العرب کښې دغه کارله عرف او عادت نه ببخي مخالف و او هيچائې توقع نشوه کولى له دغه حساسيت سره محمد(ص) په دغه ازدواج د اسلامي مساوات اصل معراج ته ورساوه چه يولوى انقلابي حرکت ورته ويلى شو.

کله چه رسول الله(ص) دمهاجرينو او انصارو ترمنځ د وروروليـ (مواخات ) تړون کاوه نو خپل تره حمزه (رض)ئې له خپل مولى زيد سره ورور وګرزاوه او ابوبکر (رض) ئې له خارجة ابن زيد سره د وروری په تار و تاړه.

حضرت عمر(رض) د اسلام دوهم خليفه چه په اسلامي سنتو ډېر ټينګ و دمساوات رعايت ئې په ډېر اهتمام کاوه. يوه ورځ چه دی په مکه کښې ګرځيده وئې ليده چه خدمتګاران ولاړدي او سرداران په ډوډی ناست دي ځکه ئې په قهر سردارانو ته وويل: څه وجه ده چه ځوک ځانونه له خپلو خدمتګارانو نه غوره ګڼي او سمد لاسه ئې خدمتګاران له سردارانو سره په ډوډی کښينول.

ده دمساواتو لحاظ دومره ساته چه د قحط په کال چه په (عام الرماده )شهرت لري او غوړي پکښې چا ته نه رسيده ده هم دغوړيو له خوراک نه ځان پرهيزکړ او دنورو په شان به ئې تيل خواړه.

دتيلو خوراک دی مريض کړ او پوستکی ئې تور و او ښت دغه کار ته ترهغه وخته ده دوام ورکړ څو چه په بازار کښې غوړي ډېرشوه او هرچا اخيستلى شوه.

همدغه خليفه (حضرت عمر (رض) )يوه ورځ يوسړی او يوه ښځه د زنا په حال کښې وليدل او قصدئې وکړچه په هغوی باندې شرعي حد جاري کړي مګر ددې کار د پاره شاهدان په کار و او شرعي اثبات ئې غوښته. حضرت عمر (رض)بې له دېنه چه دهغوی نوم واخلي اصحابو ته وويل: که خليفه ځوک دزنا په حال کښې پخپلو سترګو ووينې ايا کولى شي چه په هغوی حد جاري کړي. حضرت علی ورته وويل: که ته دهغوی نوم واخلي او بيا دخپلې ادعا د اثبات د پاره ځلورشاهدان تېرنکړې نو په تا باندې (حد قذف ) جاري کېږي. يعنې پدې کار کښې ته چه خليفه يې او يوبل سړی څه فرق نلري او مساوي ياست. هرکله چه هغه وخت نورشاهدان هلته حاضرنه و خليفه ونکړی شوه چه يوازې دخپلې مشاهدې له مخې په هغوی حد جاري کړي او نومونه ئې افشا کړي.

## مشوره:

پس له وحی نه د اسلامي نظام اساس مشوره ده. رسول الله صلى الله عليه وسلم دخدای له لوري ماموريت درلود چه ددغه اصل رعايت وکړي او په هغو مواردو کښې چه وحی نه وي موجوده دمومنانو په رايه کاروکړي نه دا چه خپله رايه معتبره وګڼي او خپل فکر په نورو تحميل کړي.

دهجرت په دريم کال چه قريشو درې زره لښکرمجهزکړ او مدينې ته ئې نژدې د احد د غره په لمنه کښې خپلې خيمې ودرولې چه په مدينه حمله وکړي، رسول الله(ص) ددغه جنګ دطرزاو طريقې په باب دخپلو اصحابو مشوره او نظريه غوښته.

دده خپله رايه داوه چه له قريشو سره په مدينه کښې مقابله وکړي چه دوی په محفوظو ځايونو کښې وي او قريش په لاروکوڅو کښې دمسلمانانو له ضربولاندې وي.

دمنافقانو رئيس عبد الله ابن ابي چه دلومړی ځل د پاره دمشورې حق ورکړی شوی و هغه هم همدغه مشوره ورکړه نورمسلمانان چه په ډېر جوش او خروش کښې و دهغوې رايه داوه چه له مدينې نه دباندې احد ته نژدې وجنګېږي او خپل شجاعت په ميدان کښې وښيي.

داکثريت فيصله همدغه وه او دهمدغې فيصلې په اساس پيغمبر(ص) له زروتنو سره له مدينې نه داحد لورته روان شو او په لاره کښې عبد الله بن ابي له خپلو درې سوه تنو سره په دې دليل داسلام له لښکر نه بيل شو چه زما مشوره ونه منل شوه نو زه هم په جنګ کښې برخه نا خلم. پيغمبر(ص) له اوه سوه تنو سره دجنګ ميدان ته ورغی دجنګ نقشه ئې پخپله ترتيب کړه او صفونه ئې برابرکړه. هلته ئې وليده چه له يوې درې نه د دښمن حمله داسلام دلښکرپه ساقه امکان لري ځکه ئې پنځوس تنه غشي ويشتونکي دعبد الله بن جبيرله امرلاندې ديوه مهم ځای په ساتلو موظف کړه چه

د ښمنو د احتمالی هجوم مخه ونيسي. په دوی باندې ئې ډېر تاکید وکړ چه مسلمانان غالب شي او که مغلوب تاسو به له دغه ځایه حرکت نه کوئ ځکه چه زمونږ بریالیتوب په همدغه ځای پورې تړلی دی.
کله چه جنګ شروع شو او د اسلام مجاهدینو لکه: ابودجانه، حضرت علي او نورو خپل زیات شهامت وښود په قریشو کښي تزلزل پیدا شو او تیښته ئې اختیار کړه. مجاهدینو دغه وخت د غنمیت مالونو په غونډولو شروع وکړه غشو ویشتونکو چه دغه حال ولید دهغه ځای ساتنه ئې بې ضرورته وګڼله او د غنایمو په هڅه کښې شوه عبدالله ابن جبیر له یو ولسو تنو سره هلته پاتې شو او نورلاړل. په دغه وخت کښې خالدبن ولید چه لاپه اسلام نه و مشرف شوی له دوو سوو او پنځو سو سپرو سره ئې د دري لخوا هجوم راوور، عبدالله ابن جبیر له خپلو ملګرو سره په شهادت ورسیده او مهاجمینو د شا له خوا په مجاهدینو حمله وروړه. هغه قریش چه د جنګ له میدانه تښتېدلي و چه دغه عقبي حمله ئې ولیده بیرته راوګرزیدل او مسلمانان د غلفت په حال کښې له دوو خوا محاصره شوه.
ډېر مسلمانان شهیدان شول او د رسول الله (ص) مبارک مخ د (ابی قمیه) د تیږې په شدید ګذار زخمی شو او یو غاښ ئې هم تلف شو. رسول الله (ص) په ځمکه راپریووت او په دغه وخت کښې د رسول الله (ص) د وژل کیدو اوازه خپره شوه، مسلمانانو خپل حواس بایلوده او مضطرب شوه چه رسول الله (ص) دغه وخت په لوړ اواز وویل: (الِيَّ عِبَادَ اللهِ اَنَا رَسُولُ اللهِ) د خدای بندګانو ماته راشئ زه یم د خدای رسول.
د دې غږ په اوریدو نوې حوصله راپیدا شوه او دیرش تنه اصحاب د رسول الله (ص) شاوخوا راټول شوه او په ډېر شدت ئې مدافعه شروع کړه او مشرکان ئې تیت وپرک کړل.
دغه د میدان جنګ چه ډېر لږ مسلمانان له ډېر زیات مجهزلښکرسره مقابل شوه او له ابتدانه د رسول (ص) د رائې په خلاف له مدینې نه بهر شروع شو مسلمانانو ته ئې ډېر لوی تاوان ورساوه او د رسول الله (ص) تره حمزه غوندې مهم شخص پکښې هم شهید شو. د دغې ماتې اصلي علت هماغه نافرماني وه چه غیشو ویشتونکو د رسول الله (ص) له ډېر تاکید سره هم هغه اهم ځای پرېښود او په غنیمت پسې لاړل.
د احد په غزا کښې د پیغمبر د رایې په خلاف د مدینې نه بهر جنګ کول او بیا د ه د موکدامرنه سرغړول او سنګر پرېښودل ښائی چه پیغمبر د مشورې غوښتلو او منلو څخه بیزاره کړی وي ځکه ورته الله تعالی په دغه حال کښې هم داسې ارشاد کوي: (**فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ آل عمران آ:١٥٩**) یعنی د دوی له ګناه څخه تېرشه او بخښنه ورته وغواړه له دوی سره په کارکښې مشوره کوه او چه عزم دې وکړنو بیا په خدای توکل لره.
له حضرت علی کرم الله وجهه څخه روایت دی چه له رسول الله (ص) نه پوښتنه وشوه چه عزم څه شی دی هغوی وفرمایل: (مُشَاوَرَةُ اَهلِ الرّاْيِ ثُمّ اِتِبَاعُهُم ابن کثیر) یعني د رائې خاوندانو سره مشوره کول او بیائې پیروي کول عزم دی.
له دې پورته توضیح څخه به دا مطلب ډېر ښه څرګند شوی وي چه قرآن کریم د مشورې د ناکامۍ او مشاورینو د غلطۍ او نافرمانۍ په صورت کښې هم یو لوی پیغمبر بیا په مشوره غوښتلو او منلو مؤظف کوي.
د قرآن کریم دا آیت: (**وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ** – الشوری آ:٣٨) له هغو کسانو نه د خدای رضامندي ښیي چه کارئې مشوره کول وي او له مشورې نه کار اخلي.

## عدالت:

د اسلام عدلي او قضایي برخه د اجتماعي نظام په حیث د انسان سر او مال، کرامت او حریت مصئون ګڼي او د حقوقو حفاظت ئې کوي. د ظلم او ضرر مخه نیسي، فتنه او فساد محکوموي، جنایت او خیانت، فحشا او منکر د جزاء وړ بولي او عدالت د شرعي احکامو په کامل او صحیح تطبیق تامینوي.
په اسلامی شریعت کښې د جرایمو سزاګانې معلومې دي د اسلام اولوالامر حاکم او قاضی مکلف دی چه د خدای احکام د عدل او انصاف له مخې تطبیق کړي او په دغه کارکښې د ضعیف او قوي، د خپل او پردي، د مسلم او غیرمسلم هیڅ فرق ونکړي.

په دې آيت شريف کښې: (لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ -سوره الحديد آ:۲۵ ) الله تعالی فرمايي په تحقيق سره مو رسولان استولی، له نښونښانو سره او له دوی سره مو کتاب او ميزان هم واستاوه چه خلک په عدل او انصاف قايم شي. په بل آيت شريف کښې وايي: (إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤدُّواْ الأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُواْ بِالْعَدْلِ -سوره النسا آ:۵۸ ) يعنی خدای پاک تاسو ته امر کوي چه امانتونه ئې اهل ته وسپارئ او کله چه د خلکو ترمنځ حکم کوئ په عدل حکم وکړئ.

خلک عامه کلمه ده او په مسلمانانو پورې څه اختصاص نه لري، لکه چه د مخه وويل شوه د حضرت محمد (ص) رسالت د ټولو خلکو د پاره دی که چا د اسلام دين قبول کړی وي او که نه ئې وي قبول کړی په هر دين چه وي اسلام ئې د بشري کرامت او انساني حقوقو په لحاظ له نورو سره مساوي ګڼي او د عدالت په محضر کښې هيڅ راز تبعيض او امتياز نشته، همدغه وجه وه چه د اسلام دوهم خليفه ديوه يهودي په دعوې کښې حضرت علی له يهودي سره څنګ په څنګ ودراوه او عادلانه فيصله ئې صادره کړه.

د رسول الله (ص) په زمانه کښې چه د مخزومي قبيلې ديوې عزيزی کورنۍ يوې ښځې غلا وکړه او په شرعي حد محکومه شوه خپلوانو ئې د خانداني او قبيلوي پت ساتلو په غرض اسامة بن زيد ته راغله چه رسول الله (ص) ته شفاعت وکړي چه دغه ښځه د شرعي حد له اجرا څخه معافه کړي اسامة که څه هم رسول الله (ص) ته ډېر مقرب وخو چه دا خبره ئې ياده کړه د خدای رسول (ص) زيات متاثر شو او د منبر په سرئې په خپله خطابه کښې وفرمايل پخواني قومونه ځکه هلاک شول چه په دوی کښې به که شريف د جرم مرتکب شو شرعي حد پرې نه جاري کيده او که خوار و غريب به جرم وکړ نو قانون به پرې تطبيق شو. د خدای په نامه مې قسم چه که زما لور (فاطمه) غلا وکړي نو هم به شرعي حد پرې جاري کوم د پيغمبر دغه وينا پدې اساس وه چه دی د الله تعالی له لوري په موکدو امرونو د عدالت په قايمولو مامورو او دغه ماموريت ډېر مهم او جدي و.

دا آيت شريف: (وَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءهُمْ وَقُلْ آمَنتُ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ مِن كِتَابٍ وَأُمِرْتُ لِأَعْدِلَ بَيْنَكُمُ - سورت الشوری آ:۱۵ ) پيغمبر ته اجازه نه ورکوله چه له الهی امر نه سر وغړوي او د عدالت په ځای کښې د خلکو د خواهشاتو تابع شي. په دې آيت شريف کښې الله تعالی پيغمبر ته وايي: په هغه څه مستقيم اوسه چه امر درته شوی د دوی د غوښتنو پيروي مه کوه او ووايه ! ما په هغه کتاب ايمان راوړی چه د خدای له لورې نازل شوی او زه ماموريت لرم چه په تاسو کښې عدل قايم کړم د عدالت قايمولو امر ټولو مومنانو ته متوجه دی او يوه ايمانی وظيفه ګڼل شويده.

په سوره مايده کښې دا آيت شريف: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُونُواْ قَوَّامِينَ لِلّهِ شُهَدَاء بِالْقِسْطِ وَلاَ يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَى أَلاَّ تَعْدِلُواْ اعْدِلُواْ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَى —المائده آ:۸ ) مومنان په مجموعي ډول مخاطب کوي او ورته وايي. او سئ د خدای د پاره قيام کوونکي او په عدل او انصاف شهادت ورکوونکی.

د قوم د ښمنی دې باعث نشي چه له عدالت څخه مووا ړوي، عدل او انصاف وکړئ عدل تقویٰ ته نژدی دی.

همدارنګه: (وَأَوْفُواْ الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ الانعام آ:۱۵۲ ) هغه الهی حکم دی چه هر مومن په پيمانه او تله کښې په انصاف کولو او د عدالت په خيال ساتلو مکلف کوي.

په يو بل آيت شريف کښې مسلمانان په وينا او خبرو کولو کښې د عدل او انصاف په رعايت مامور شويدي لکه چه وايي: (وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُواْ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَى الانعام آ:۱۵۲ ) يعنی په وينا کښې عدالت کوئ که څه هم محکوم عليه ستاسو خپلوان وي.

په بل آيت شريف کښې وايي: (كُونُواْ قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاء لِلّهِ وَلَوْ عَلَى أَنفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالأَقْرَبِينَ النساء آ:۱۳۵ ) يعنې په عدالت او انصاف قائم اوسئ او د خدای د پاره شاهدي ادا کړئ که څه هم ستاسو د ځان په ضرر يا ستاسو د مور او پلار يا ستاسو د خپلوانو په ضرر وي.

رسول الله (ص) وايي: ( انّ اَحَبّ النَاسِ اِلی اللهِ يَومَ القِيَامَةِ وَاَقرَبَهُم مِنهُ مَجلِساً اِمَامٌ عَادِلٌ وَانّ اَبغَضَ النَاسِ اِلی اللهِ يَومَ القِيَامَةِ وَاَشَدّهُم عَذَاباً اِمَامٌ جَابِرٌ-الشيخان والترمذی ) يعنی په خلکو کښې خدای ته دقيامت په ورځ ډېر محبوب او ډېر نژدې عادل امام دی او په خلکو کښې خدای ته ډېر مبغوض دقيامت په ورځ او په شديد عذاب گرفتار ظالم امام دی.

## فردي آزادي:

فردي آزادي هم داسلام داجتماعي نظام مهم اصل دی چه اسلامی جامعه پري اتکالري.

په اسلام کښې مطلقه حکومت او مستبد نظام شرعي جوازنلري. داسلام اولوالامر په هر نامه چه وي مکلف دي چه داسلامی احکامو او اسمانی قانون مطابق حکومت وکړي او شرعی احکام نافذ کړي.

په هغو موارد وکښې چه شرعي احکام نه وي موجود هلته به دمشورې او شورائي نظام په اساس هغه قوانين تطبيقوي چه خلکو منلی او وضع کړي وي.

هرکله دفرد دپاره دفکر او عقيدې آزادي اسلام تضمين کړيده او دحق دظهار اوصحيح انتقاد حق ئې هرچاته ورکړيدی نو ددغه اصل په خلاف شورائي قانون هم نشی وضع کيدی. په اسلامی نظام کښې داحق هرچاته حاصل دی چه اولوالامر ته هم دښو چارو توصيه وکړي او دبد وچارو له اجراځخه ئې منع کړي. په همدغه اساس داسلام لومړی خليفه حضرت ابوبکرصديق چه درسول الله (ص) دوفات څخه وروسته دخلکو له خوا دخلافت لپاره وټاکل شو په لومړی خطبه کښې ئې داسي وويل:

اې خلکو زه ستاسو په خوښه ستاسو دچارومتولی شوم زه له تاسو څخه بهترنه يم او تاسو غوندې يو شخص يم که زه دحق پيرو وم ماسره مرسته وکړئ که موو ليدم چه په باطله روان يم په سمه لارمې برابرکړئ. زما اطاعت ترهغه وخته کوئ چه زه دخداي په لارسم يم که هر کله مې دخدای له امره سر وغړاوه زما اطاعت بيا په تاسو لازم ندی.

وروسته ترده چه حضرت عمر (رض) ددوهم خليفه په حيث انتخاب شو په خپله خطبه کښې ئې خلکوته داسی وويل: که زه موبې لارې اوکوږ وليدم په سمه لارمې برابر کړئ. په دغه وخت کښې يوتن له مسلمانانو څخه راپاڅيد توره ئې له تيکې راوويسته او خليفه ته ئې وويل: که ته له سمې لارې منحرف شوې په دې توره به دې سموو.

حضرت عمر ډېر خوښ شو او دخدای شکر ئې په ځای کړ چه په مسلمانانو کښې داسې کسان شته چه خليفه په توره سمې لارې ته برابروي او نه ئې پرېږدي چه له حق او عدالت نه انحراف وکړي. همدغه خليفه چه له رعب او هيبت نه ئې سرکشان او ظالمان لکه پانه رېږدېدل په ځان باندې ئې دانتقاد او اعتراض لاره نه وه تړلې اود حق اوريدلو ډېره لويه حوصله ئې لرله.

يوه ورځ چه ده دغنيمت مالونه ويشل دغنيمت په مالونو کښې يو ډول يمانی څادرونه هم وچه هرچاته يويو څادر ورسيده په دغه جمله کښې حضرت عمر (رض) اودده ځوی عبدالله ته هم يويو څادر ورپه برخه شو، هر کله چه دخليفه قدوقامت لوړو او يو څادرئې دلباس دپاره نه رسيده ځوي ئې خپل څادرهم ده ته ورکړ چه لباس ئې پوره شی. بله ورځ چه خليفه دغه لباس اغوستی واو دخطبې منبرته وخوت خلکوته ئې وويل: ( اَيُّهَاالنَاسُ اسمَعُوا وَاَطِيعُوا )يعنی اې خلکو ! واورئ او اطاعت وکړئ. په دغه وخت کښې سلمان فارسی پاڅيد اووئې ويل: (لَاسَمعَ لَکَ عَلَينَا وَلَاطَاعَةَ) يعني نه ستا او راونه درته اطاعت کوو. حضرت عمر (رض) وويل: ولې؟ دڅه دپاره. سلمان وويل: داالباس دې له کومه کړ، يوڅادر خوستا نه بسيده معلومه ده چه تاله نورونه زياته برخه اخيستې ده اوبې عدالتی دې کړی.

حضرت عمر (رض) خپل ځوی عبدالله ته وويل چه ددې خبرې ځواب ته ورکړه. کله چه عبدالله توضيحات ورکړه چه ماخپله برخه ده ته ورکړه چه لباس ئې پوره شي، پس له هغه سلمان وويل اوس ستاخبرې اورو او اطاعت دې کوو.

له دغو مثالونو څخه معلومېږي چه په صدر اسلام کښې اسلامی جامعه څنگه وه او افرادو څومره اوترڅه حده آزادي درلوده.

په اسلام کښې دښو توصیه اوله بدو څخه دمنع کولو حق هر مسلمان ته ورکړ شوېدی یعنی (امر په معروف اونهی له منکر څخه ) دیوه اجتماعي دیني اصل په حیث منل شوی او هر مومن مکلف دی چه بې لارې سړی په لارکړي او دښو رهبري ورته وکړي.
ددغه اصل له تطبیق څخه داسلام خلیفه ګانو هم ځانونه مستثنی نه ګڼل او دمسلمانانو دغه جرئت ئې دځان په مقابل کښې هم تقویه کاوه.
په خپله رسول الله (ص) هم دقرآن کریم دغه حکم یعنی امرپه معروف اونهی له منکر څخه مسلمانانو ته په جدی توګه رسولی او دحق ویلو جرئت ئې پکښې روزلی و ، وائي چه دحنین له غزانه وروسته کله چه رسول الله (ص) غنم ویشل نو (مؤلفة القلوب ) ئې هم په ځینو بخششونو خوشحاله کړه په دغه وخت کښې یوه تن ورته وویل: ( اعدل یَا مُحَمَدُ فَانّکَ لَم تَعدِل )یعنې اې محمده عدالت وکړه تا عدالت ونکړ ، رسول الله (ص) څه ونه ویل هغه سړی خپله خبره بیا تکرار کړه ، داځل ورته پیغمبر (ص) وویل:
(وَیحَکَ فَمَن یَعدِلُ اِذا لَم اَعدِلُ) یعنې افسوس دی ستا په حال که زه عدالت ونکړم څوک به ئې وکړي.
په پیغمبر (ص) باندې دغه راز انتقاد مسلمانانو ښه ونه ګاڼه او غوښتل ئې چه هغه سړی تادیب کړي مګر رسول الله (ص) منع کړه او نه ئې غوښتل چه د دغسې وېناؤ ازادي سلبه کړي که څه هم مولفة القلوبو ته دغه ورکړه دوحې په اساس وه او چاپرې دانتقاد حق نه درلود.
دعقیدې آزادي په اسلامي جامعه کښې دهر چا حق ګڼل شوی اسلام څوک نه مجبوري چه خپله عقیده پرېږدي او اسلامی عقیده جبراً ومني.
په قرآن کښې راغلی دی: (لاَ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ قَد تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ -البقره آ:۲۵۶ ) یعنی جبر او زور په دین کښې نشته په تحقیق سره هدایت اوګمراهي سره بیل شویدي. دهر چا خوښه هره عقیده خوښوي او په هر دین باقي پاتې کېږي.
په بل آیت کښې رسول الله (ص) ته خطاب کوي: (أَفَأَنتَ تُكْرِهُ النَّاسَ حَتَّى يَكُونُواْ مُؤْمِنِينَ -یونس آ:۹۹ ) آیا ته خلک مجبوروې چه مومنان شي.
له دې څخه معلومېږي چه الله تعالی دغه راز جبر نه خوښوي او په زور مسلمانول اسلامي طریقه نده. دحق اظهار او دچاپه ناوړه عمل انتقاد کول دیوه حق په حیث مومن ته نه دی ورکړی شوی بلکه دایماني وظیفې په حیث یو مکلفیت ګڼل کېږي او ګڼل شوی ، سړی کولی شی چه له خپله حقه استفاده ونکړي اوله خپله حقه تېرشي مګر خپل مکلفیتونه پرېښودی نشي او په وجایبو کښې اهمال یاغفلت جایزکار نه دی.

## امرپه معروف اونهی له منکر څخه:

په ښوچارو نورو ته امرکول او له بدو کارونو څخه منع کول یو موکد قرآني حکم دی چه مکرر راغلی او بیا بیا ئې توصیه شویده.
د دغه مهم اصل مراعات په اسلامي جامعه کښې حتمي دی او د وظیفې په حیث دهرمومن مکلفیت ګڼل کېږي. الله تعالی فرمائي: (وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ -سورت التوبه آ:۷۱ ) مومنان او مومنانې یوله بله دوستان دي چه یو بل ته دښه کارامر کوي او له بدو څخه ئې منع کوي.
په دې وظیفه کښې نارینه او ښځې یو شان ماموریت او مکلفیت لري یعنی ښځه هم مکلفه ده چه بلې ښځې یا نارینه ته دښو توصیه وکړي اوله بدو چارو څخه ئې راوګرزوي.
دامر معروف معنی یواځې لارښوونه او رهمنائی نده بلکه درهبری او دامرکولو مفهوم پکښې نغښتی دی لکه چه نهی عن المنکر کښې بدوته په بد ویلو علاوه دممانعت او مخنیوي معنی پرته ده.

د قرآن کریم دا آیت شریف: (کُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ -ال عمران آ:۱۱۰) اسلامی امت پدې پوهوي چه تاسو په ټولو امتونو کښې بهتر امت یاست چه د خلکو د پاره را ایستل شوي ئي د نیکو کارونو امر کوئ او له ناوړه کارونو نهی کوئ یعنی د نورو رهبري ستاسو په غاړه ده.

بل آیت دی: (وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَأُوْلَـئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ -آل عمران آ:۱۰۴) باید له تاسو څخه یو جماعت وي چه نیکو کارونو ته بلنه وکړي په ښو کارونو خلک مامور کړي او له بدو کارونوئې را وګرزوي او همدوی دي رستګاران او نجات موندونکي.

قرآن کریم چه د خدای صالح بندګان را ښیی نو د اسې ئې ستایی:

(يُؤْمِنُونَ بِاللّهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَأُوْلَـئِكَ مِنَ الصَّالِحِينَ -آل عمران آ:۱۱۴) ایمان لري په خدای او د قیامت په ورځ او امر کوي په ښو چارو ، نهی کوي له ناوړو چارو او بیړه کوي په نیکو کښې او همدوی دي له صالحانو څخه.

حضرت محمد (ص) خپلو پیروانو ته د منکراتو (ناوړه اعمالو) په مخنیوي کښې وایی: (مَن رَاٰی مِنکُم مُنکرَاًفَلیُغَیّرَهُ بِیَدِه فَمَنّ لَم یَستَطِع فَبِلِسَانِه فَمَن لَم یَستَطِع فَبِقَلبِه وَهُوَاَضعَفُ الاِیمَانِ -الشیخان) که له تاسو څخه کوم یوه د چا ناوړه عمل ولید په لاس دې منع کړي که دائې له لاسه نه کیده له خپلې ژبې نه دې کار واخلی که دائې هم نشو کولای په زړه کښې دې ترینه کرکه وکړي او ډېر ضعیف ایمان همدغه دی.

## د ظلم مخنیوی:

ظلم په خپل نفس وي که په بل انسان او که غیر له انسانه په بې ضرره حیوان باندې وي په اسلام کښې ډېر بد ګڼل شوی او مجادله ورسره لازمه ده د ظلم مخنیوی او د ظالم لاس له ظلمه لنډول هغه لوی جهاد دی چه اجرئې ډېر زیات دی.

الله تعالی فرمایلي دي: (وَلاَ تَرْكَنُواْ إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُواْ فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ هود آ:۱۱۳) چا چه ظلم کړی ډېر لږ میل هم ورته مه کوئ چه اور به مو وسوزوي. هر کله چه ظلم کوونکی ته ادنی تمایل د سوزوونکی عذاب موجب دی له ظالم سره مرسته او د ظالم اطاعت به څنګه وي او په خپله د ظالم حال به څه وي؟

یو بل آیت شریف دی: (وَاتَّقُواْ فِتْنَةً لاَّ تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُواْ مِنكُمْ خَآصَّةً -الانفال آ:۲۵) ځانونه وساتئ له هغې فتنې نه چه یوازې ظالمانو ته نه رسېږي او په هغوی پورې اختصاص نلري یعنی نورو ته هم سرایت کوي او عمومیت پیدا کوي. مطلب دا دی چه په یوه قوم کښې که څو تنو ظلم کړی وي او نورو اقلاً نصیحت هم ورته نه وي کړی او نه ئې خپله کرکه څرګنده کړې وي نو دغه فتنه یوازې ظالمانو پورې تخصیص نه پیدا کوي نورو ته هم خپله اندازه رسېږي.

حضرت ابوبکر صدیق (رض) ویلي دي چه له رسول الله (ص) څخه مې اورېدلی دي چه ویل یې: (اِنّ النّاسَ اِذَا رَاَوُا الظّالِمَ فَلَم یَاخُذُوا عَلیٰ یَدِه اَوشَکَ اَن یَعُمّهُمُ اللّٰهُ بِعِقَابٍ )معنی دا چه که خلکو ولیده چه ظالم ظلم کوي او دوی ئې لاس ونه نیوه ژر ده چه عذاب ئې خدای دوی ته عام کړي.

دا هم د رسول الله (ص) قول دی: (مَن اَعَانَ ظَالِماًسَلّطَهُ اللّٰهُ عَلَیهِ ) څوک چه له ظالم سره معاونت کوي هماغه ظالم پرې خدای پاک مسلط کوي.

دا هم نبوي حدیث شریف دی: (اُنصُر اَخَاکَ ظَالِماًاَومَظلُوماً ) یعنی له خپل ورور سره مرسته وکړه ظالم وي او که مظلوم وي. اصحابو تپوس وکړ چه د مظلوم سره خو مرسته معلومه ده چه باید له ظلمه نجات ورکړو او له ظالم سره به څنګه مرسته کوو؟

رسول الله (ص) ورته وویل: ظالم له ظلمه منع کول له ظالم سره مرسته ده.

ضعیفان د زورورو ظالمانو له منګلو خلاصول او له ظلم نه نجات ورکول د مسلمانانو وظیفه او وجیبه ده. مسلمانان د قرآني احکامو په مقتضی نشی کولی چه د مظلومانو له حمایت نه ځان وژغوري او بیطرفه پاتې شي.

په دغه باب کښې ددې آیت حکم ډېر صریح دی: (وَمَا لَكُمْ لاَ تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاء وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَـذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا -النساء آ:۷۵) څه دي تاسو لره (یعنی په تاسو څه شوي) چه نه جنګیږئ د خدای په لار کښې او د مظلومانو او مغلوبانو په نجات کښې. (چه د دغه مغلوبان او ضعیفان عبارت دي) له نرو او ښځو او کوچنیانو څخه چه وآیي: اي پروردګاره! وباسه مونږ له دغه قریې څخه چه اهل ئې ظالم دی. په یو بل آیت کښې په خپله مظلومانو ته اجازه ورکړشوی چه مقابلې او مقاتلې ته واوزی او خپل انتقام واخلي:

(أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ -الحج آ:۳۹) اجازه ورکړشویده هغوته چه (نور) له دوی سره جنګ کوي ددې لامله چه په دوی ظلم شویدی او الله ددوی په نصرت هم ګوره ښه قادر دی.

وګورئ د ظلم قبلول او ظلم ته غاړه ایښودل د اسلام په دین کښې نشته لکه چه په مسیحی دین کښې شته. د ظلم تحمل او په مظلومیت قانع کیدل د ظالم تبر ته لاستی ورکول دي چه د اسلامی اصولو خلاف ئې بللی شو. که مظلومان د ظالمانو په مقابل کښې ډېر ضعیف وي او د مقابلې امکان نه وي موجود نو بیا مظلومانو ته په کار دي چه هجرت وکړي او په مهاجرت ځانونه د ظلم له منلو څخه وژغوري.

دامطب په دې آیت کښې ډېر ښه واضح دی: (إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلآئِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُواْ فِيمَ كُنتُمْ قَالُواْ كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الأَرْضِ قَالْوَاْ أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُواْ فِيهَا فَأُوْلَـئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءتْ مَصِيرًا - النساء آ:۹۷) هرآئینه هغه کسان چه روح ئې پرښتو (ملکو) قبض کړ پداسې حال کښې چه په ځانونو ظالمان و. وایي په څه حال کښې وئ وایي و مونږ ضعیفان په ځمکه کښې. وایي آیا نه وه ځمکه د خدای پراخه چه له خپل وطن څخه مو هجرت کړی وای ددغې ګروه ځای دوزخ دی او دوزخ ډېره بده ماوی ده.

وګورئ! هغه مظلومان چه له ظلم څخه هجرت نه کوی او په ظلم قناعت او صبر کوي په خپل نفس ظالمان (ظالمی انفسهم) بلل شوي او د ظالمانو ځای یعنې دوزخ ئې مرجع او ماوی ده.

د تجاوز او تعدي په مقابل کښې مقابله بالمثل اسلامی تعلیم دی. الله تعالی وایي:

(فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُواْ عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ -البقره آ:۱۹۴) څوک چه تعدي وکړي په تاسو تعدي وکړئ په هغه باندې هماغسې چه په تاسو ئې تعدي کړیده.

انتقام اخیستل او د بدو سزا ورکول د اجتماعي نظام د بقا او قیام د پاره مهم اصل دی او قصاص چه یو شرعي حکم دی په همدغه اصل بناء دی. که دا اصل عملي نشي او ظلم او تعدي جواز ولري د فساد مخنیوی نشي کیدی او امن او امان مختل کېږي.

د چا بدي ښکاره کول او عیبونه ئې څرګندول یعنی غیبت په اسلام کښې منع دی (ولا یغتب بعضُکم بعضاً) مګر مظلوم ته دا حق ورکړ شویدی چه د ظالم بدي ښکاره کړي او په جهرورته بد وو ایي:

(لاَّ يُحِبُّ اللّهُ الْجَهْرَ بِالسُّوَءِ مِنَ الْقَوْلِ إِلاَّ مَن ظُلِمَ -النسا آ:۱۴۸) نه خوښوي خدای د بدې خبرې څرګندونه مګر هغه چه پرې ظلم شویدی.

د ظلم او ظالم په باب همدغو مره بحث دا ثابتوي چه اسلام د ظلم قبلولو اجازه مسلمانانو ته نه ورکوي او په جدي ډول ئې د ظالمانو مقابلې ته ولاړوي.

په اسلام کښې دا نشته چه که چا په یوه مخ په څپېړه ووهلې خپل بل مخ ور واړوه ځکه چه دا له ظلم سره معاونت دی.

د غه مسیحي تعلیم اسلام رد کړیدی اسلام البته د عفوې درس مسلمانانو ته ورکوي او ورکړی ئې دی خو د عفوې معنی ظلم ته غاړه ایښودل او ظالمانو ته تسلیمیدل ندي که څوک د عجز او ناتوانی په وجه خپل انتقام نشي اخیستی او

دظلم تحمل کوي عفوه نه ده بلکه مجبوريت دی. عفوه هغه څوک کوي چه دانتقام اخيستلو قدرت لري او دلاس بريدلو په صورت کښې لاس نيسي او جانب مقابل له احسان لاندې راولي.

## مرسته (تعاون):

په اسلامي جامعه کښې يوله بله ملګرتيا او دمرستې لاس ورکول هغه اساسي اصل دی چه په قرآن کريم کښې ئې په ډېر اهتمام بيابيا تاکيد شوی او ډېر نبوي احاديث په دغه باب کښې موجود دي. الله تعالی فرمايي: (وَتَعَاوَنُواْ عَلَى الْبرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ -المائده آ:۲) او مرسته وکړئ په نيکۍ او تقوی کښې او مرسته مه کوئ په ګناه او ظلم کښې. دتعاون کلمه په مطلق ډول په مالي، فکري، لساني او بدني معاونتونو مشتمله ده چه سړی بايد له نورو نه هيڅ راز مرسته ونه سپموي يعني په ښه لاره کښې او په ښو چارو کښې.
که څوک په ګناه، تعدي يا تجاوز کښې له بل نه مرسته غواړي دا راز مرسته جايزه نده بلکه دهغه ايسارول او منع کول له هغه سره مرسته ده.
په يوه حديث شريف کښې راغلی دی: (ايُّمَا اهلُ عرصَةٍ اصبَحَ فِيهِم امرَاءٌ جَائعاً فَقَدبَرِئَت مِنهُم ذِمَةُ اللهِ تَبَارَکَ وَتَعَالیٰ_المسند الامام احمد بن جنل).
ددې حديث شريف لنډ مطلب دادی چه پاک خدای له هغو خلکو څخه بيزاره دی چه په شاوخوا کښې ئې څوک په لوږه شپه سباکړي.
يو بل حديث دی: (مَن کَانَ مَعَهُ فضلَ ظَهرٍ فَليُعِن بِه عَلیٰ مَن لاظَهرَلَهُ وَمَن کَانَ لَهُ فضلَ زَادٍ فَليُعِن بِه عَلیٰ مَن لازَادَلَهُ_مسلم، ابوداود) ددې حديث په موجب هغه څوک چه پشتيبان او دسړيو قوت لري بايد له هغه چا سره مرسته وکړي چه بې کسه وي او هغه چه مالي قدرت لري بايد له نيستمنو سره کمک وکړي.
اسلامي امت په حقيقت کښې يو جسد دی چه بايد مشترک احساس ولري او ديوه غړي په درد ټول وجود متاثر شي.
دا مطلب رسول الله (ص) داسې افاده کړيدی: (مَثَلُ المُؤمنِينَ فِی تَوآدِّهِم وَتَرَاحُمِهِم وَتَعَاطُفِهِم کَمَثَلِ الجَسَدِ اِذَا اشتَکیٰ مِنهُ عُضوٌ تُدَاعی لَهُ سَائِرُ الجَسَدِ بِالسّهرِ وَالحُمیٰ).
يعنی دمومنانو مثال ددوستۍ او رحم او عاطفې په لحاظ لکه يو جسد دی چه ديو غړي په درد او ناراميۍ ټول وجود په درد او ناراميۍ مبتلا کېږي.

| | |
|---|---|
| بنی آدم اعضای يکديګرند | که در آفرينش زيک جوهرند |
| چو عضوی بدرد آورد روزګار | دګر عضو ها را نماند قرار |

دتعاون په برخه کښې دمالي مرستې سپارښتنه زښته ډېره شويده دمال انفاق او صدقه کول يعنی محتاجو او محرومو کسانو سره مالی مرسته او دخدای په لاره کښې مال ښندل دايمان او اسلام ډېر مهم رکن دی چه هم دزکات په صورت په بډايانو فرض دی او هم دخيرات او صدقاتو په ډول په صالحو اعمالو کښې ډېر لوړ مقام لري.
علاوه پر زکات له خوارانو او غريبانو سره مالي مرسته ديوه حق په حيث دشتمنو په ذمه ايښودل شوی او يو ديني مکلفيت دی.
دا حديث شريف: (انّ فِی المَالِ حَقّاً سِویٰ الزّکَاتِ- ترمذي)
دا مطلب ډېر ښه ثابتوي چه سربيره په زکات او ماسویٰ له زکات نه په مالونو کښې دفقيرانو او مسکينانو حق شته چه بډايان ئې بايد اداکړي؟
په قرآن کريم کښې هم دمالدارانو په مالونو کښې دسايل او محروم حق تثبت شويدی.

الله تعالی دمتقیانو اونیکانو په ستاینه کښې وايي: (وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ -الذاريات آ:۱۹) ددوی په مالونو کښې د سوالګرو او محرومو خلکو برخه وه، یعنی علاوه په زکات ئې دوی ته په خپل مال کښې برخه ورکړې وه په یو بل آیت شریف کښې وايي: (وَالَّذِينَ فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ - المعارج آ:۲۴) له دې آیت نه دمخه په نورو آیتونو کښې ویل شویدي چه ددوزخ اورهغه کسان غواړي چه شایې اړولی او اعراض ئې کړی، مالونه ئې جمع کړي او ساتلي دي...... له دغې جملې نه یوشمیر خلک مستثنی کوي او په استثنا شوو کسانو کښې وايي: اوهغوی چه په مالونو کښې ئې برخه معلومه ده د سوالګرا و محروم د پاره.

په دې دواړو آیتونو کښې د سائل او محروم د پاره برخه د حق په نامه دا ښیی چه شتمن د خپلو مالونو داسې مالکان نه دي چه نور ورسره شریک نه وي او د چا حق ورسره نه وي.

دا حق باید شتمن او بډایان په داسې طریقه ادا کړي چه احسان بارول او د تحقیرولو اذیت ورسره نه وي بلکه داسې وي لکه چه یو داین ته خپل دین ادا کوي. دا هم د الله تعالی قول دي:

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تُبْطِلُواْ صَدَقَاتِكُم بِالْمَنِّ وَالأذَى -البقره آ:۲۶۴) اې مومنانو ! مه ضایع کوئ خپل خیراتونه په احسان بارولو او زړه ازارولو سره. د انفاق او صدقاتو په باب چه ډېر زیات آیتونه په مختلفو مضمونونو نازل شوه مسلمانانو له رسول الله (ص) څخه پوښتنه وکړه چه څومره مال د خدای پاک په لار کښې نفقه کړو نو په ځواب کښې ئې دا آیت نازل شو.

(وَيَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلِ الْعَفْوَ -البقره آ:۲۱۹) له تاسو څخه پوښتنه کوي چه څه نفقه کړي، ووایه هغه څه چه له حاجته زیات وي یعنی ضروري مصارف ځانته وساتئ او نور خیرات کړئ. که څوک له خپل ضروري حاجت نه زیات مال ذخیره کوي او د خوارانو، غریبانو سره مرسته نه کوي نو هغوی د دې آیت د حکم لاندې راځي: (وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ -التوبه آ:۳۴) هغه کسان چه ذخیره کوي سره او سپین زر او نه ئې نفقه کوي د خدای په لار کښې نو زیری ورکړئ د دردناک عذاب.

له دې دوو آیتونو څخه دا استنباط کیدی شي چه د جاجت د خاوندانو له مرستې نه هغه څوک معافیت پیدا کوي چه له خپلو ضروري حوایجو څخه زیات څه نلري او په بډایانو کښې نه شمیرل کیږي. هغه کسان چه د کفایت په اندازه څه لري د خیرات په ورکړه مکلف نه دي ځکه چه که دوي نورو ته څه ورکړي په خپله په محتاجانو کښې حسابیږي او د نورو تعاون ته اړکیږي. که دغه مرسته وکړي نو بیا د پاک خدای د دې ستاینې وړ ګرځي چه فرمايي: (وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ –الحشر آ:۹) او مقدم ګڼي نور په خپلو نفسونو که څه هم دوی فاقه وي، او هغه شی ته په خپله حاجت لري چه نورو ته ئې د ایثار له مخې ورکوي. له ضعیفانو او محتاجانو سره مرسته فی سبیل الله جهاد ګڼل شوی او د خدای په نزد ډېر اجر لري. که د قرآن په ژبه پوه شو نو یوه اړ او محتاج ته قرض حسن ورکول له خدای سره معامله ګڼلی شویده: (وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا-الحديد آ:۱۸ ) قرض ورکړئ خدای ته قرض حسن. هرڅوک پوهیږي چه خدای بې نیازه دی او ځمکه، آسمانونه او عالمونه دده دي مګر هغه قرض چه مومن ئې مومن ته ورکوي خدای دغه قرض په ځان حسابوي او بنده ته داسې ښیی چه خدای ئې پوروړی دی.

رسول الله (ص) ویلی دي: (اِنّ اللّهَ عَزّوَجَلّ یَقُولُ یَومَ القِیَمَةِ یَا ابنِ اٰدَمَ مَرِضتُ فَلَم تَعدنی ! قَال یَارَبِّ کَیفَ اَعُودُکَ وَاَنتَ رَبُّ العالَمین؟ قَال: اَمَا عَلِمتَ اِنَ عَبدی فُلَانٌ مَرِضَ فَلَم تَعدهُ؟ اَمَا عَلِمتَ اَنّکَ لَو عدتّهُ لَوَجَدتَنی عِندَهُ؟ یَا ابنِ اٰدَمَ ! اِستَطعَمتُکَ فَلَم تَطعِمنی ! قَال یَارَبِّ وَکَیفَ اَطعمُکَ وَاَنتَ رَبُّ العالَمین؟ قَال اَمَا عَلِمتَ اَنکَ اِستَطعَمکَ عَبدی فُلَانٌ فَلَم تَطعمهُ اَمَا عَلِمتَ اَنّکَ لَو اَطعَمتَهُ لَوَجَدتَ ذٰلکَ عِندی؟ یَا ابنِ اٰدَمَ اِستَسقَیتُکَ فَلَم تَسقِنی !قَال یَارَبِّ کَیفَ اَسقَیتُکَ وَاَنتَ رَبُّ العَالَمین؟ قَال اِستَسقَاکَ عَبدِی فُلَانٌ فَلَم تَسقَهُ اَمَا عَلِمتَ اِنّکَ لَو سَقَیتُهُ لَوَجَدتَ ذٰلکَ عِندِي- رواه مسلم) یعنې الله تعالیٰ د قیامت په ورځ وايي اې بنیادمه زه مریض شوم ته پوښتنې ته رانغلې. بینادم وايي اې

زما ربه څنګه به پوښتنې ته درغلی وای ته رب العلمین یې. خدای ورته وایي: ته خبرنه وی چه زما فلانکی بنده مریض شو او تائې پوښتنه ونکړه آیا نه پوهېدی چه که دهغه پوښتنې ته ورغلی وای زه به دې له هغه سره موندلی وای. ای بنیادمه ! ما درڅخه طعام وغوښته او تا طعام رانکړ ، بنیادم وایي څنګه مې طعام درکړی وای او ته رب العلمین یې. الله تعالی وایي: آیا تا ته معلومه نده چه له تا نه زما فلاني بنده طعام وغوښته او تا ورنکړ آیا ته نه پوهیدې چه که طعام دې ورکړی وای هغه به دې له ماسره پیدا کړی وای. اې بنیادمه مادرنه اوبه وغوښتې او تا رانکړې ، بنیادم وایي اې ربه څنګه به مې اوبه درکړی وای او ته رب العلمین یې. الله تعالی وایي له تانه زما فلاني بنده اوبه وغوښتې او تا ورنکړې که تا هغه ته اوبه ورکړې وای هغه به دې له ماسره موندلی وای.
ددې حدیث شریف په بنا دیوه اړ او محتاج غوښتنه په حقیقت کښې دخدای غوښتنه ده او له بېوزلو سره مرسته له خدای سره معامله ده.

خدای دشتو خاوندانو ته داسې امر کوي: (وَآتِ ذَا الْقُرْبَى حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ - بنی اسرائیل آ:۲۶ ) ورکړه دقرابت خاوند ته دهغه حق او مسکینانو او مسافرته. یعنی خدای پاک دغه کسان دبډایانو په مال کښې دحق خاوندان ګڼي او ددوی حق ترېنه ددوی دپاره غواړي. که څوک دغه حق نه پرځای کوي د نورو دحق غاصب ورته ویلی شو.
په قرآن کریم کښې څو څو ځله امر شویدی چه دخدای په لاره کښې مال وښندئ او دغه کار جهاد بلل شویدی مګر دغه مال ښندل دقرآن کریم په ژبه تجارت ګڼل شویدی لکه چه وایي:
(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ -الصف آ:۹ او ۱۰ ) اې مومنانو آیا دلالت وکړم تاسو ته په داسې تجارت چه نجات درکړي له درناک عذاب څخه. ایمان راوړئ په الله او په رسول ئې او جهاد وکړئ دخدای په لاره کښې په خپلو مالونو او په خپلو نفسونو دا خیردی تاسو لره که پوهېږئ.
دغه مالي جهاد چه په حقیقت کښې ډېر ګټور تجارت دی په ظاهرئې که معامله له خوارانو ، غریبانو ، کونډو او یتیمانو یا پردیسانو سره ده په معنی کښې له خدای سره معامله ده او له خدای سره معامله دهر چا په ګټه ده.
په یوه حدیث شریف کښې راغلي دي: ( اَلسّاعِی عَلَی الأرمِلَةِ وَالمِسکِینِ کَالمُجَاهِدِ فِی سَبِیلِ اللهِ اَو القَایِمِ اللَّیلَ وَالصَّائِمِ النَّهَار_ شیخان والترمذی والنسائی ) څوک چه سعی کوي دکونډې او مسکین په بهبود کښې داسې دي لکه فی سبیل الله مجاهد یالکه قایم اللیل او صائم النهار.
مطلب دا چه دبېوزلو خدمتګار او دبېنوایانو مرستیال له مجاهد ینو او هغو کسانو سره برابردی چه دشپې خدای ته په طاعت ولاړوي او د ورځې روژه وي.

دخیراو ثواب کارونه ډېردي مګر دهغه شی انفاق چه سړي ته محبوب او عزیز وي کامل خیردی. الله تعالی وایي: (لَن تَنَالُواْ الْبِرَّ حَتَّى تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَ -آل عمران آ:۹۲ )یعنې هېڅکله به ونه مومئ دخیر کمال څو چه نفقه کړئ له هغه شی څخه چه درته ګران وي.
مطلب دا چه دنیکۍ او خیر کمال ته نشئ رسیدلی او دخدای رحمت ، رضا او جنت نشئ موندلی تر څو چه دخلکو په معاونت کښې له خپلو ډېر وعزیزو او محبوبو شیانو څخه نفقه نکړئ. هغه محبوب شی غوره مال وي او که جاه او منزلت.
ځیني خلک وي چه په خپلو مالونو کښې ئې ځینې شیان زړه ته ډېر نژدې وي او ځینې داسې وي چه خپل جاه وجلال سره ئې ډېره مینه وي مومن باید هم قیمتی مالونه او هم خپل انانیت دخلکو دخیر دپاره قربان کړي چه دخیر او نیکۍ کمال ته ورسېږي.
که یو معزز سړی له یوه خوار او غریب یا مظلوم سره ګرځي او معاونت ورسره کوي ښائي چه په ظاهره دا دځان دپاره حقارت وګڼي مګر دخدای په نزد لدې نه لوی عزت نشته او دبل دخیر دپاره ځان خوارول ډېر زیات اجر لري.

د اسلام په ډېرو احکامو کښې د يوې ښې جامعې جوړول او له نورو سره تعاون او ملګرتيا اصلي منظوردی او دغه منظور په اجمالي او کلي ډول په دې آيت شريف کښې ډېر ښه ځای شوی دی:
(إِنَّ اللّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالإِحْسَانِ وَإِيتَاء ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاء وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ -سورت النحل آ:۹۰) په تحقيق سره خدای امر کوي په عدل او احسان او د قرابت خاوندانو ته په ورکړه او نهی کوي له فحشاء او منکر او بغی څخه.
عدل او احسان داسې کلمې دي چه په ټولو ښېګڼوئې اطلاق کيدی شی او ټول مادي او معنوي معاونتونه پکښې راتلی شی.
که دا دوه کلمې په يوه جامعه کښې عملي شي ټولي بدبختی له منځه وړي او ټولي خوښۍ يوې جامعې ته راوړي. له خپلوانو سره ښيګڼه په خاص ډول خپلوی ټينګوي او د اتصال رشتې تقويه کوي.
همدارنګه فحشاء، منکر او بغی ټول مفاسد او رذايل او مظالم احاط کوي او د غودرې شيونونه ځان ساتل د جامعې داصلاح او فلاح موجب ګرځي. د تعاون په باب د احاديث ډېر جامع او په هر راز مرستو حاوي دی.
(مَن نَفّسَ عَن مُسلِمٍ کُربَةً من کُربِ الدُنيَا نَفسَ اللهُ عَنهُ کُربَةً مِن کُربِ يَومَ القِيَامَةِ وَمَن يَسّرَعَلیٰ مُعسَرٍ يَسّصرَ اللهُ عَلَيهِ فِی الدُنيَا وَالاخِرَه وَمَن سَتَرَ مُسلِماَ سَتَرَهُ اللهُ فِی الدُنيَا وَالاخِرَه وَاللهُ فِی عَونِ العَبدِ مَاکَانَ العَبدُ فِی عَونِ اخِيهِ-عن ابوهريره_اخرجه مسلم) ځوک چه لرې کړي له يوه مسلمان څخه د دنيا له غمونو يو غم لرې کوي خدای له هغه څخه د قيامت له غمونو نه غم. ځوک چه اساني راولي په هغه چا چه په تنګسه کښې وي خدای پرې په دنيا او آخرت کښې اساني راولي.
ځوک چه د مسلمان پرده وکړي خدای ئې په دنيا او اخرت کښې پرده کوي. الله تعالی له بنده سره معاونت کوي ترڅو چه بنده د خپل ورور معاونت کوي. پيغمبر (ص) هغه ځوک په خلکو کښې بهتر ګڼې چه خلکو ته ئې ګټه او فايده رسېږي (خَيرُ النّاسِ مَن يّنفَعُ النّاسَ) په يوه بل حديث شريف کښې رسول الله (ص) وايي: (اَلمُؤمِنُ الذِی يُخَالِطُ النّاسَ وَيَصبِرُعَلیٰ اَذَاهُم خَيرُمّنَ الذِی لَايُخَالِطُ النّصاسَ وَلَايَصبِرُعَلیٰ اَذَاهُم عن ابن عمر-اخرجه ابن ماجه باسناد صحيح) هغه مومن چه خلکو سره ګډون کوي او د خلکو په اذيت صبر کوي له هغه چانه بهتر دی چه خلکو نه ګوښې او سی او په اذيت ئې صبر نه کوي. مقصد دا چه اسلام انزوا او ځاني نه خوښوي او له نورو سره ګډ او سيدل غواړي. له نورو سره ګډ او سيدل صبر او تحمل ته ضرورت لري.
د صبر توصيه په قرآنی آياتو او نبوی احاديثو کښې ډېره زياته راغلی ده چه د اسلام مخالفانو او دښمنانو تربنه غلط تعبيرونه کړي او ويلی ئې دي چه د اسلام دين د نورو اديانو په شان د استعمارګرو او استثمار چيانو ګټه خپلو پيروانو ته توصيه کړيده چه د بډايانو او د قدرت د خاوندانو په مظالمو صبر وکړي او غلامی ته ئې غاړه کېږدي يعنې په دنيا کښې هر راز بد بختی او بې عدالتی په ځان ومني او اجرئې په آخرت کښې له خدايه وغواړي. د دوي په عقيده د اسلام دين خلک د جابرانو او ظالمانو اطاعت ته رابولي او په مظلوميت ئې قانع کوي. حال دا چه دوی د اسلام ضد اسلام ګڼلی او د قرآن په واضحو او صريحو احکاموئې سترګې پټې کړيدي. دوی دې ته نه دی کتلی چه حضرت محمد (ص) او د هغه خليفه ګانو او نورو ربښتينو پيروانو عملاً د جابرانو او ظالمانو په مقابل کښې څه وکړه او د جهادونو معنی څه وه؟
هغه صبر چه په قرآن کريم کښې ئې بيابيا توصيه شويده د ظلم او ظالم په مقابل کښې د مقاومت او ثبات معنی لري چه بايد د جهاد په ميدان کښې وښو دل شی او عزم و اراده قوي کړي.
د ظلم ا و ظالم په مقابل کښې مو د مومن او مسلمان دريځ د مخه هم څرګند کړ چه نه به په ځان ظلم قبلوی او نه به د بل مسلمان د مظلوميت تحمل کوي يعنی د بل مظلوم مرسته به هم کوي او د ظالم لاس به له ظلم څخه لنډوي.
اوس راشئ چه د صبر کلمه په قرآن کريم کښې وګورو چه په څه معنی استعمال شويده او په څه منظور په مکرر ډول بيا بيا راغلی ده.

په سورة البقره کښې دا آیت: (وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاء والضَّرَّاء وَحِينَ الْبَأْسِ   آ:۱۷۷) دا معنی لري چه په سختیو، کړاوونو او دجنګ په میدان کښې صبر کوونکی او میدان نه پرېښودونکی دنیکانو او صالحانو په ډله کښې خاص او ممتازمقام لري یعنی په جهاد کښې ثبات او مقاومت صبر دی. په بل آیت کښې:
(وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّى نَعْلَمَ الْمُجَاهِدِينَ مِنكُمْ وَالصَّابِرِينَ   -محمد آ:۳۱) الله تعالی فرمايي: په تاسو باندې ازمېښت کوو او امتحان درنه اخلو چه ستاسو مجاهدین او صابران یعنی ثابت قدمه کسان له بې ثباته او غیر مجاهدینو څخه ممتاز کړو.
وګورئ! صابر دمظلوم صفت نه دی د مجاهد صفت دی او د قهرمانۍ مفهوم پکښې نغښتی دی.
همدارنګه دصابرانو ذکر په دې آیتونو کښې: (كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللّهِ وَاللّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ –البقره آ:۲۴۹) (يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُواْ مِئَتَيْنِ- الانفال آ:۶۵) دا مطلب نورهم ډېرښه ثابتوي چه صابران هغه دي او خدای له هغو صابرانو سره دی چه دوی لږ وي خو له ډېرو سره جنګېږي.
صابران هغوته وائي چه شل تنه ئې په دوو سووتنوبری مومي. صبر یعنی د ایمان قوت چه اقلیت په اکثریت باندې غالب ګرزوی او د اسلام په تاریخ کښې ئې مثالونه کم نه دي په قرآن کښې صبر له عزم سره تړول شوی او د اوالعزمو صفت ګڼل شویدی (فَاصْبِرْ كَمَا صَبَرَ أُوْلُوا الْعَزْمِ مِنَ الرُّسُلِ   الاحقاف آ:۳۵) هغه قرآني تعلیم دی چه دصبرمقام او منزلت ډېروي او د شجاعت او شهامت مظهر ئې ګرزوي.
سره له دې که څوک دصبر په معنی نه وي پوه شوی یائې ځان نه وي پوه کړی د اسلام ګناه نه ده دفهم ګناه ده یا د عناد. په اسلام کښې که صبر د اذیت او ضرر قبلولو په معنی راغلی لکه په تېر شوي نبوي حدیث کښې چه هغه څوک بهتر وګڼل شو چه له خلکو سره اختلا ط لري او په اذیت ئې صبر کوي نه هغه چه د اذیت نه د ځان ژغورلو په وجه له خلکو نه ګوښی ګرځی او منزوي کېږي.
په دغسې مواردو کښې د اسلام مطلب دا دی چه انسان باید دومره زغم او حوصله ولري چه په اجتماع کښې ژوند وکړی شی او مو دماغه نه وي. هره جامعه که هر څومره خوا ږه ولري يو څه ترخه هم ورسره وي او د عسلو مچۍ هم بې نیشه نه وي.
سړی باید دجامعې د آزارپه مقابل کښې دضرورت په اندازه زغم ولري او له صبر او حوصلې نه کار واخلي. په مصیبتونو کښې صبر او په خوښیو کښې صبر د اسلامی اخلاقو جز دي چه اجتماعی او بشري ژوند ورته ډېر ضرورت لري او بیخی بی صبره سړی په جامعه کښې ځای نشي نیولی. اسلام فرد ته دا حق ورکوي چه په جامعه کښې تجلی وکړي او خپل فردي حقوق، حیثیت او اعتبار وساتي مګر له جامعې نه د بیلیدو او ګوښی کیدو اجازه نه ورکوي او نه ئې مرورتوب ته پرېږدي.
له فرد نه هغه څه نه جوړوي چه له جامعې سره جوړ نه وي او جامعه ناجوړه کوي. فرد او جامعه که څه هم ظاهراًیو دبل مقابل ګڼل کېږي خو دامقابله دتور او سپین مقابله نه ده. که څوک وغواړي چه دیوې جامعې نوعیت او کیفیت ځانته معلوم کړي ودې ګوري چه جامعه له څنګه افرادو جوړه شویده یعنی د افرادو څنګه والی د جامعې په څرنګوالی کښې دخل لري. همدارنګه دافرادو په جوړلو کښې دجامعې جوړښت مهم عامل دی او معلومه ده چه څنګه جامعه، څنګه افراد جوړوي.
په همدغه اساس که څوک ځانته دا معلوموي چه اسلام څنګه جامعه جوړول غواړي ودې ګوري چه اسلام څنګه افراد جوړوي او د شخصیت په جوړولو کښې ئې کړنلاره څه ده او څه نقشه لري.

## فرد جوړول:

په اسلامي نظام کښې فرد دحق خاوند ، د ارادې خاونداو دحيثيت وکرامت خاوند دی، ده ته يوازې د ژوند حق نه دی ورکړشوی د پت او عزت لرلو حق هم ورکړ شوی او توهين وتحقيرئې جرم وجنايت يا اقلاًقباحت ګڼل شويدی.
دی دمالکيت او مشروع فعاليت حق لري او دانتخاب او تصرف حق ورته حاصل دی چه هم فکر کولی شي او هم کارکولی شي، د نظام په جوړولو او دزمامدار په ټاکلو کښې دده رايه معتبره ده او په اجتماعي چاروکښې ئې مشوره ارزښت لري.
په اسلامی فقه کښې يوه مسلمان اويوې مسلمانې ښځې ته دا حق په مساوي ډول ورکړشويدی چه که هريو له دوی څخه يوه کافر ياد کافرانو يوه جماعت ياديوې کلا يا ديوه ښارخلکو ته امان ورکړي نوبيا هيڅ يو مسلمان له هغوی سره دجنګ او قتال حق نلري او دغه امان شرعی اعتبارلري مګرپه هغه صورت کښې چه دغه امان ورکول د مسلمانانو دپاره دفساد موجب وي نوبيا دغه دامان ورکړه رديدلی شی. په دغه صورت کښې که پخپله امام او اولوالامرهم امان ورکړي وي امان ئې د رد وړدی.
دغه مهم او سترحق چه اسلامي اوشرعي قانون دمسلمان هر فردته ورکړی دفرد موقف په اسلامي جامعه کښې ډېرلوړ ښئی چه نظير به ئې ددنيا په قوانينو کښې نه وي موجود يوازې همدغه يوحکم کافی دی چه دفرد اهميت په جامعه کښې وښئی او دفردي اعتبار وزن وټاکي. همدارنګه په اسلام کښې فردته دشهادت حق ورکول او په ميراث کښې ورته په حق قايليدل دا ثابتوي چه اسلامی نظام فردته ډېره اعتناء لري. په فردي حقوقو کښې ځينې حقونه چه اوس په ديموکراسی نظامونو کښې انسان ته ورکړ شويدي اسلام ډېرد مخه افرادوته ورکړيدی او دانسان مادي اومعنوي مصئونيت ئې په ښه شان تامين کړيدی.
په دغوحقوقوکښې کوم حق چه په اسلامي لحاظ دډېر دقت وړدی اوله ډېرغور نه پکښې کاراخيستل شوی هغه دمالکيت حق دی چه بنيادي حيثيت لري او دحقوقو مور ورته ويلی شو.
همدغه حق دفرد په سرنوشت او دفردپه مادي او معنوي جوړښت کښې اساسي نقش لري او مستقل بحث غواړي چه دلته ئې تفصيل بميورده نه دی.

## مالکيت اومالی سياست په اسلام کښې:

انسان چه انسان شوی اولږغوندې په څه پوهيدلی دی د مال لرلو او مال ډېرولو فکراومينې ئې په زړه او دماغ کښې غځونې کړيدي.
له هغه وخته چه ابتدائي انسان له ښکارنه کارته مخه کړه او له زراعت سره اشنا شو نو ټاټوبی ئې پيدا کړ اودمال غونډولو او ساتلوپه فکر کښې شو. د مالکيت احساس راپيدا شو او وده ئې وکړه، دمال مينه ورو ورو زياتيده او دانسانی حرص سترګي ورځ په ورځ وږي کيدې.
مال که له يوې خوا دانسان حاجتونه اوضرورتونه پوره کول نوله بلې خوائې حسادتونه او رقابتونه راپارول او دمال په سر دښمنۍ اوجنګونه شروع شوه. په مال کښې دخيراوشر دواړه جنبې محسوسې شوې.
له ميلاد نه پنځه سوه کاله پخوا دمال اومالکيت په باب فلسفي بحثونه شروع شوه. مال ته بد وويل شوه او دمالکيت په ضد دمبارزې فکرپيدا شو ، افلاطون په واضح ډول د اجتماعی چارو دکارکوونکوپه مورد کښې دملکيت دلغوه کولو آواز اوچت کړاو مسيحی دين مال دبشري جامعې دفساد منشا او دشرارت تومنه وګڼله.
د اسلام په مقدس کتاب ( قرآن ) کښې مال دفتنې په نامه وبلل شواو دانسان دښمن ورته وويل شو. مګر په همدغه کتاب کښې ئې ډېرښه نومونه هم ثبت شوه لکه: ( خير اوفضل ) يعنی اسلام دمال دواړه جنبې په نظرکښې ونيولې

اوعیب وهنرئې دواړه پکښې مشخص کړه. په همدغه ملاحظه ئې هم انسان ته دمالکیت حق ورکړاوهم ئې په دغه حق ځه قیوداو شرطونه کیښودل.
اسلام دبشرپه حیاتي ضرورتونو او حاجتونو سترګې پټې نکړې اومال ته ئې دده اړتیا په نظرکښې ونیوله مګر دمال په لرلو او راغونډولوکښې ئې افراط بدوګاڼه او حدودئې ورته وټاکل.
اسلام داسې دین نه دی چه دانساني غرایزو په مخکښې سد شي او بیخی ئې مخه بنده کړي. مګر طغیان او عصیان ته ئې هم نه پرېږدي اوښه مجری ورته پیداکوي. هغه حیواني جنبه چه د انسان په ځېنه کښې شته اسلام ئې محوه کوي نه بلکه د تهذیب کوښښ ئې کوي.
دمال او مالکیت په مسئله کښې هم نه افراط خوښوي او نه تفریط، دقرآني احکامو له مخې دمالونو اصلي مالک خدای دی او خدای دغه مالونه انسانانو ته په مجموعی ډول ورکړیدي چه افرادپکښې دجماعت په وکالت دجایز تصرف حق لري او په مطلق ډول پکښې تصرف نشي کولی. یعنی سود پرې نشي خوړلی، قمار پرې نشي کولی، په عیاشۍ او فحاشۍ ئې نشي لګولی.
قرآن کریم مال لرونکی دمستخلفینو په حیث مالکان ګڼلی نه داصیلانو په حیث یعنی اصلی مالکان ئې نه دي بللی.
وګورئ ! په سورة حدید کښې دغه آیت: (آمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَأَنفِقُوا مِمَّا جَعَلَكُم مُّسْتَخْلَفِينَ فِيهِ  الحدید آیت:۷)
دترجمې حاصل: په خدای او رسول ایمان ولرئ او هغه ځه نفقه کړئ چه خدای پکښې خلیفه ګان ګرزولی یاست.
په سورة نورکښې داآیت: (وَآتُوهُم مِّن مَّالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ  النور آیت:۳۳) په صریح ډول حکم کوي چه ورکړئ له هغه مال ځخه چه خدای درکړیدی. په الهي کتاب کښې چه مال دخدای ورکړه ګڼل شویده او دعاریت مفهوم پکښې پروت دی دامطلب هم ښه واضح شویدی چه په دغومالونو کښې چه ظاهراًخپلو عاریتي خاوندانو ته منسوب دي او مجازاً د دوی بلل کېږی بیاهم یوازې ددوی نه دي. محرومه طبقه او سوالګرهم پکښې حق لري یعنی علاوه په زکات محروم اوسایل دبېایانو په مال کښې دحق خاوندان دي او مشترک مال دی.
په سورة الذریت کښې چه دمتقیانو حال بیانېږي نودمال په برخه کښې دوی پدې ډول معرفي شویدي:
(آخِذِينَ مَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ.  وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ  الذریت آیت ۱۲) یعنی دوی دهغه ځه اخیستونکي دي چه خدای ورکړیدي او په مالونو کښې ئې علاوه په زکات سوالګراو محروم حق درلود. بله داچه اسلام دمالونو انحصار په ځومحدود لاسونو کښې بدګڼلی او دامطلب دسورة حشر په دې آیت کښې ډېرښه ځرګند شویدی:
(مَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنكُمْ الحشر آیت: ۷) یعنی هغه مال چه بې جنګه دفئی او خراج په صورت درسول الله(ص) لاس ته ورځي هغه دالله تعالی، درسول الله(ص)دذی القربی، دیتیمانو، مسکینانو او دلارویوپردیسانوحق دی چه په دوی به ویشل کېږي او دا د دې دپاره چه دولت دځوتنو غنیانو په لاس کښې محبوس او محصور نشي. په دې آیت کښې دمال د توزیع غایه داښودل شویده چه سرمایه تراکم ونکړي او د اغنیاؤ طبقه ډېره پیاوړې نشي. یعنی اسلام ډېر د مخه دطبقاتي تضاد د مخنیوي فکر کړی او نه ئې غوښتل چه په اسلامی امت کښې ډېرتېټو او پاس منیځ ته راشي.
غنااوبډائي که ځه هم په ظاهري نظرپه اسلام کښې صریحاً منع نه ده او هرچاته داحق ورکړشوی چه په جایزه طریقه دشتو خاوندشي او هغه تکالیف په ذمه واخلي چه اسلام د شتمنو په ذمه ایښې دي لکه د زکات، خیرات او صدقاتو ورکړه او دقرض حسن له لارې له محتاجوسره مرسته اونور.
مګرکه څوک له ژورفکر نه کار واخلي او اصلي منظورته ښه ځیرشي هغه په وهېږي چه شیشګی که حلال دی شکل ئې دمرداردی. دمال پیداکولو او ډېرولو هغه طریقې چه اسلام منع کړیدي لکه سودخوري، احتکار، بډې اخیستل، غبن فاحش په معامله کښې، دروغ ویل، غدرکول، تقلب یاداسې نور داټول د قاروني بډائي په مخکښې بند بزونه دي چه په مستقیم اوجدي ډول دقارونیت مخه نیسي. له بلی خوا هغه تشویق او ترغیب چه دخیر واحسان په باب په نبوي

احاديثو او قرآني آيتونو کښې وينو مسلمانانو ته دا اجازه نه ورکوي چه دفقيرانو او دحاجت د خاوندانو په مقابل کښې له بخل و امساک نه کار واخلی او په خيريه چارو کښې سترګې پټې کړي. سربيره په دې اسلام دمسلمانانو اولوالامرته داحق ورکړی چه دخوارانو او فقيرانو دمړولو او ژوندښه کولو دپاره دضرورت په اندازه دبډايانو مالونه بيوزلو او غريبانو ته ورکړي او موازنه قايمه کړي. حضرت عمر (رض) چه د خپل خلافت په وروستيو وختو کښې اجتماعي وضع ته ملتفت شو چه ځينې کسانو ډېر مالونه جمع کړيدي او نورپه فقر او غربت کښې ژوند کوي نو اراده ئې وکړه چه دتعادل او مالي تسوئې دپاره له اغنياو سره فقيران دهغوي په مالونو کښې شريک او سهيم کړي ځکه يې وويل: (نُطعِمُ المُسلمِينَ مِن بَيتُ المَالِ حَتیٰ اِذَالَم تَجِد فِيهِ شَياً اَدخَلنَا عَلیٰ کُلِّ اَهلِ بَيتِ مِن الاَغنِيَاءِ مِثلَهُم مِن المُحتَاجِينَ وَمَا نَزَالُ نَفعَلُ ذٰلِکَ حَتیٰ يَطعَمَ المُسلِمُونَ جَمِيعاً ) يعنې مسلمانان به له بيت الّمال څخه مړوواو چه په بيت المال کښې څه پاتې نشي دبډايانو په هر کور کښې به هغومره محتاجان ننباسو او داکاربه ترهغه وخته کوو چه ټول مسلمانان په ګېډه ماړه شي.

په اسلام کښې دمالکيت په باب داآيت هم دجدي توجه وړدی: (وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ التوبة آيت:۳۴ ) هغه کسان چه سره او سپين زر ذخيره کوي او دخدای په لارکښې ئې نه نفقه کوي د دردناک عذاب زيری ورکړئ دهمدغه آيت په استناد او دنبوي احاديثو په بنا د رسول الله (ص) په اصحابو کښې ابو ذرغفاري دقارونيت په ضد په تبليغی مبارزه لاس پورې کړاو په دغه جهاد کښې ئې ډېر تکليفونه وليدل ترڅو چه بالاخر د ربزې دښتې ته نفی بلدشو او هلته د ډېر غربت په حال کښې مړشو اولارويو خاوروته وسپاره.

دابوذر اويوشمير نورو اصحابو تبليغ دغه معارضه دحضرت عثمان په خلافت کښې ډېره توده شوه، دابوذرتبليغ چه څومره په شتمنو اوبډايانو بد لګيده هغومره ئې خواران او فقيران ځانته جلبول او طرفداران ئې ډېربدل.

حضرت علي او ابوذرپه دې عقيده و چه ديوه کال دنفقې دپاره څلور زره درهمه ساتل جايز کاردی او له دينه زيات مال ذخيره کول ممنوعه کنز شميرل کېږي.

په ډېرونبوي احاديثو کښې دا مطلب ښه واضح دی چه اسلام فاحشه غنا بده ګڼي او دانه خوښوي چه ځينې په عيشونو او خوندونو کښې ډوب وي او نورپه لوږه او تنګسه کښې ژوند وکړي.

(خُذمِن اَغنِيَائِهِم وَرُدّ اِلیٰ فُقَرَائِهِم ) له بډايانو نه ئې اخله او فقيرانو ته ئې ورکوه دا اسلام اقتصادي کړنلاره ده. ابی امامه روايت کوي چه رسول الله (ص)ويلي دي: ( يَا اِبنِ اٰدَمَ اِنّکَ اِن تَبذِلِ الفَضلَ خَيرٌلَکَ وَاِن تُمسِکهُ شَرٌلَکَ–مسلم و ترمذي ) يعنی اي بنيادمه ! که مال وښندې خيردې پکښې دی او که ئې وساتی درته شردی.

همدارنګه بلال وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: (مَارُزِقتَ فَلاتَخبَاءِ وَمَا سُئِلتَ فَلا تَمنَع فَقُلتُ: يَارَسُولَ اللهِ وَکَيفَ لِی بِذالِکَ؟ قال: هُوَذَاکَ اَوِالنَارُ) مطلب داچه رسول الله (ص) وفرمايل: څه چه ستا روزي شويدي مه ئې ساته او ذخيره کوه ئې مه او څه چه درنه وغوښتل شو منع کوه ئې مه.

بلال وويل دابه زما دپاره څنګه شي؟ هغوی وفرمايل يا همدغه شان او يا د دوزخ اور.

امام احمد حنبل په مسند کښې داحديث نقلوي: (اَيُمَا اَهلُ عِرصَةٍ اَصبَحَ فِيهِم اِمرَوٌجَا يعاً فَقَدبَرِئَت مِنهُم ذِمَةُ اللهِ تَبَارکَ وَتَعَالیٰ ) خلاصه ئې داچه پاک خدای له هغو څخه بيزاره دی چه په څنګ کښې ئې څوک په لوږه شپه سبا کوي. په قرآن کريم کښې متعددآيتونه راغلي دي چه د (مترفينو ) ژوند ئې بدګڼلی او مسلمانان ئې په جدي ډول دې ته متوجه کړيدي چه آسوده ژوند اودعيش ونوش ژوند ونکړي بلکه متوسط ژوند اختيار کړي چه نورورته ونه پخسېږي او مزې چړچې پکښې نه وي دآسوده حالی. په غندنه کښې يو علت چه قرآن په ګوته کړی هغه دادی چه مترفينو يعنی آسوده حالو کسانو هروخت دنوي دين په قبلولو کښې شديد مقاومت کړی او له پيغمبرانو سره ئې خپل خصومت ته دوام ورکړی دی يعنی دارتجاع ټينګ حاميان همدغه خلک دي چه دهر تغير او تحول مخه نيسي او دزاړه حال بقااو دوام غواړي.

دبشري تاريخ له مطالعې نه هم داپته لګېږي چه عياش قومونه له مينځه تللي او هغه قومونه چه په مشقت او زيار و زحمت کښې لوی شوي په نورو غالب شويدي. اوس خلک پدې هم پوه شويدي چه عياشي دصحت په لحاظ هم

ډېرخطرونه لري او ډېر فسادونه ورسره تړلي دي. د اسلام پیشوا حضرت محمد (ص) دمترفینو یعنی دعیاشانو او اسوده حالو کورونه (بیوت الشیاطین ) د شیطانانو کورونه بللي دي چه فتنې او فسادونه ترې ولاړېږي.
الله تعالی فرمايي: (إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَى أَن رَّآهُ اسْتَغْنَى-العلق آيات:۶ او ۷) په تحقیق سره انسان سرکشي کوي چه ځان بې پروا او مستغني ویني. یعنی مال او ثروت دغرور او سرکشی باعث ګرزي. په بل آیت کښې راغلی دی:
(وَلَوْ بَسَطَ اللَّهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهِ لَبَغَوْا فِي الْأَرْضِ الشوری آیت:۲۷ ) که چیرې خدای دخپلو بندګانو روزي پراخه کړې وای هرګوره به ئې په ځمکه کښې بغاوت کړي و. دهمدغسې ملاحظاتو په وجه مسلمانانو ته دا اجازه نشته چه خپل حلال مال هم په ځان باندې له ضرورته زیات ولګوي او له اسراف وتبذیر څخه کار واخلي.
پاک خدای وايي: (وَآتِ ذَا الْقُرْبَى حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَلاَ تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُواْ إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ الاسراء آیت:۲۶ ) یعنی ورکړه خپل قریب ته دهغه حق او مسکین ته او پردیس ته تبذیر او اسراف مه کوه مبذرین بیشکه دشیطانانو ورونه دي.
په بل آیت کښې وايي: (وَكُلُواْ وَاشْرَبُواْ وَلاَ تُسْرِفُواْ إِنَّهُ لاَ يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ الاعراف آیت۳۱ ) خورئ، څکئ او اسراف مه کوئ اسراف کوونکی دخدای نه دي خوښ.
د اسراف معنی له حد او اندازې نه تجاوزدی په حریصانه ډول خوراک او څکاک او بیځایه خرڅونه په اسراف کښې شامل دي. دمسلمانانو اغنیاء نشي کولی چه له نورو نه په عالي سطحه ژوند وکړي او شان وشوکت بې نظرونه ځانته جلب کړي. په اسلامي جامعه کښې که خواران او غریبان وربښمني جامې نشي اغوستلی بډایان هم نشي کولی چه دغه فاخر لباس واغوندي. کله چه دعبدالرحمن بن عوف ځوی له خپل پلار سره د دوهم خلیفه حضرت عمر مخې ته ورغی او وربښمین کمیس ئې اغوستی و خلیفه دغه کمیس له ګریوانه ترلمنې پورې څیرې کړاو ددغسی معتبراوډېرشمتن صحابی ځوی ئې هم پرینښود چه د اسلام له مقرراتو نه سر وغړوي. دهمدغه خلیفه خپل ژوند سره له دغه لوړاو عالي مقامه په متوسط حال کښې و او له نورونه ځانته په څه امتیاز قایل نه و. یوه ورځ چاتربڼه پوښتنه وکړه چه تاته له بیت المال څخه دڅومره مال مصرفول جواز لري. ده وویل په کال کښې دوه جوړه جامې، یوه جوړه د ژمی او بله داوړي دپاره او دومره څه چه دحج تو ښه شی زما او دزما عیال قوت باید دقریشو دمتوسط شخص په اندازه وي. زه دمسلمانانو له جملې څخه یو تن یم څه چه نورو ته رسېږي ماته به هم رسېږي.
پخپله درسول الله (ص) د زهد او ریاضت ژوند چه له مشقته ډک و، همدارنګه دده دغوره اصحابو ساده اوبې عیشه ژوند چه دمجبوریت په وجه نه بلکه دعزم او ارادې له مخې وپه همدغه اساس بنا ؤ، چه دوی نه غوښتل چه نور په محرومیت کښې وي او دوی په نازونعمت کښې.
همدغه وجه وه چه د اسلام دوهم خلیفه حضرت عمر (رض) د رماده دکال په قحط کښې غوړي ترهغه وخته ونه خواړه ترڅو چه په بازارکښې دنورو دپار ه پیدا شوه او قحطی له منیځه لاړه. په دغه موده کښې خلیفه هم دنورو په شان تیل خواړه او دتیلو خوړلو په وجه ورته ناروغي پیدا شوه او پوستکی ئې تک تور شو.
اسلام خپل پیروان په اخلاقي لحاظ داسې روزل چه ددنیا مال، زیب وزینت او عیش وعشرت ته په حقارت وګوري او مینه ورسره پیدا نکړي، له خپل نفس او نفسی خواهشاتو سره مبارزه وکړي او ساده ژوند اختیار کړي. حرص او هوس پرېږدي له بخل او امساک نه ځان وژغوري، کبراو غرورپه ځان کښې پیدا نکړي، صدق او صفا ولري او دخلکو په خدمت کښې د اسلام په خدمت کښې جهادته ملاوتړي او قربانۍ ته چمتو شي.
اسلام دخپلو پیروانو دتنظیم او اداري، دتهذیب او تربیت دپاره دوه وسیلې په کا واچولی، تشریع او توجیه ځینې شیان شته چه په اسلام کښې شرعاًمنع نه دي مګر دیانتاًمنع دی د شریعت او د دیانت تقاضا هر کله یوه نه ده، په ځینو مواردو کښې تشریعي جنبه او توجیهی جنبه یو له بله بیلېږي.

تشریعي احکام هغه دي چه په عام ډول هرمسلمان پرې مکلف دي او که څوک ترې مخالفت وکړي شرعاًمحکوم کېږي لکه زکات چه که څوک ئې له اداکولو انکاروکړي اولوالامر ته داحق حاصل دی چه ورسره محاربه وکړي اوقتال تـه بې ملاوتړي، په توجیهي لحاظ هرمسلمان عـلاوه پـه زکات دیانتاً موظف دی چه دصد قاتو او خیراتونولـه لارې لـه خپـل حاجته زیات مال دخدای په لارکښې مصرف کړي او دخیر واحسان نمونه اومثال شي.

توجیهی احکام دتشریعی احکامو په شان په قانونی شکل نه تطبیقېږي بلکه داخلاقي اصولو پـه حیث رواج مومي او دخاصانو اورهبرانو کاردی. په اسلام کښې ښه اوبد ، حلال وحرام ځانته مدارج او مراتب لري. مـثلا پیـاز یـا اوږه خوړل په اصل کښې جایز کاردی مګردجمعي په ورځ اوپه هغو وختونوکښې چه سړی له نوروسره ګډون کوي او دخولې بوی بې نور په عذابوي په ممنوعاتو کښې شمېرل کېږي. دتقوی او ریاضت خاوندان دجایز اوناجایز پـه تشـخیص کښـې لـه عامو مسلمانانو نه فرق لري.

دعامو مسلمانانو تقوی همدغه ده چه پردی حرام مال ونخوري اولـه کبیره ګناهونوڅخه ځان وساتی. دزاهدانو تقوی داده چه پخپل حلال مال هم ځان موړنکړي او دنفـس دتزکېې او د روح دتصفـې دپـاره جایز لذتونـه هم پـه ځان ودروي یا بې ډېرکم کړي.

هغه بډائي چه دحرامو مالونو په غونډولو لاس ته نه وي راغلی او فرایض و واجبات پکښې نه وي ترک شـوی شـرعاًمنع نه ده.

درسـول الله(ص)پـه اصـحابو کښـې هـم اغنیـاء موجودولکـه حضـرت عثمـان غنـی، عبـدالرحمن بـن عـوف او وروسـته بیاطلحه اوزبیر یاداسې نور، مګر پخپله حضرت محمد (ص)،حضرت ابوبکر، حضـرت عمـر او حضـرت علی او ځینې نوروبه دومره مال له ځانه سره نه ساته چه بډایانو کښـې حسـاب شي. دوی بـه د اربشـو پـه ډوډی هـم ځانونـه نـه مړول او دمترفینوله اسوده ژوند څخه بې کرکه کوله.

داکارپه اسلام کښې اجباري نه دی اختیاري دی. اسلام هغه دین نه دی چه دبشري فطرت او انسانی غرایزو په مخکښې سد شي او بیخې ئې بنده کړي. اسلام د بشري اوعالمي دین په حیث پـه خلکو باندې عسـراوحرج نـه راولي. (لاَ يُكَلِّفُ اللّهُ نَفْسًا إِلاَّ وُسْعَهَا –وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ –يُرِيدُ اللّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلاَ يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ البقـره آیات ۲۸۲او۱۸۵) داهغه آیتونه اوقرآني نصوص دي چه داسلامي قوانینـو اسـاس بـې ګڼلی شـو. پـدې آیتونـو کښـې لـه وسع نـه زیـات تکلیـف لـه اوړو څخـه اخیسـتل شـوی او پـه دیـن کښـې حرج نفی شـویدی خدای نـه غـواړي چـه پخپلـو بندګانو عسراوسختي راولي. دقرآن دا آیتونه:

(وَلَا تَنسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا القصص آیت ۷۷)، (لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ التحـریم آیت ۶۶)هغـه حیـاتي درسـونه دي چه د صحت اوقوت وقایه ورپورې تړلې ده او سړی له دې څخه منع کوي چه خپلـه دنیـائي برخـه هیـره کـړي یاپـه ځان باندې دخدای حلال حرام کړي.

رسول الله(ص) هغه زاهد او عابد چه هره ورځ بـه روژه واو هـره شـپه بـه بې پـه نفلونو سباکوله مخاطب کړ او ورتـه بې وویل: (..... وَلِنَفسکَ عَلَیکَ حَقٌ وَلِبَدَنِکَ عَلَیکَ حَقٌ وَلِزَوجَتِکَ عَلَیکَ حَقٌ.......) په تاباندې ستا نفس حق لـري، بـدن دې درباندې حق لري، او ښځه دې درباندې حق لري. لکه چه په عبادت او ریاضت کښې افراط منع دی او رهبانیت نفی شویدی دغه شان په صدقاتو کښې هم خپل ټول مال صدقه کول او دپولې ټک تـه کښـیناستل ښـه کـار نـه دی. کـه څـوک خپل ټول مال صدقه کړي او ځانته هېڅ پرې نږدي. له دې آیت څخه سرغړوي.

(وَلاَ تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَى عُنُقِكَ وَلاَ تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَّحْسُورًا الاسـراء آیت:۲۹) مـه خپـل لاس خپلې غاړې پورې تړه او مه بې خلاصوه په تمام خلاصوالی چه کښېنې ملامت شوی او درمانده.

پاک خدای هغه کسان ستایلی دی چه دمال په انفاق کښې اعتدال ساتي او له افراط او تفریط نه ځان ژغوري (وَالَّذِينَ إِذَا أَنفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذَٰلِكَ قَوَامًا الفرقان آیت ۲۷ ) یعنی هغه کسان چه مالونه نفقه کوي نه اسراف کوي او نه بخل او وي د بخل او اسراف ترمنځ اعتدال ساتونکی.

دژوند په چارو او انساني اعمالو کښې اعتدال ساتنه په اسلام کښې یو مهم اصل دی چه ښه او بد په همدغه معیار سنجول کېږي او د اسلامی اخلاقو اساس ګڼل شویدی. د اسلام جمالی خوا همدغه اسلامي اخلاق دي چه انسان مهذب کوي او سړیتوب صیقلوي.

د اسلامي تعلیماتو غایه اسلامی تربیه ده چه په اسلامی اخلاقو پوري ټینګ تعلق لري او د افرادو د شخصیت په جوړولو کښې يې نقش ډېر څرګند دی.

د اسلام ربنتیاني ممثلین او برجسته افراد هماغه کسان دي چه اسلامي شعایر، آداب او اخلاق پخپل کردار و عمل کښې تمثیلوي او صعودي سیر و حرکت یې د انسانیت دلوړو مدارجو په لوري وي. که د تشبیه له مخې اسلامي روش په بدني ورزشونو کښې دغره ختل وګڼوویلی شو چه دغه ورزش په مطلق کوه ګردی. تامینېږي او په ټیټو غرونو کښې په ګرزیدو او د غونډیو په ختلو هم سر ته رسېږي مګر هغه کسان چه په دغه ورزش کښې خپله فوق العاده لوړتیا او پیشقدمي ښيي هغوی دلوړو غرونولوړو څوکو ته خیژي او تاریخي یادګار پرېږدي.

په اسلام کښې هم اخلاقي رهبران همدغه شان وګڼئ چه د انسانیت ډېرو هسکو مقامونو ته ځانونه رسوي او نوروته عملاً لوړختل ممکن ګرزوي. دوی د مثل اعلی په حیث اخلاقي معیارونه او مقامونه او چتوي او نور د لوړتیا لور ته رابولي چه د دوی اقتضا وکړي او په دوی پسې لاړشي.

## د اسلامی اخلاقو غایه او اغیزه:

انسان چه اشرف المخلوقات بلل کېږي معنا یې دانه ده چه دده ټول خویونه او عادتونه دستاینې وړدي او په هرڅه کښې هرڅه نه ښه دی. دی دخلقت د مثل اعلی په حیث دتکامل په لوړه مرحله کښې واقع دی او په نورو موجوداتو یې دخپلو خاصو استعدادونو او معنوي قواو په مرسته تسلط موندلی مګر له ډېرو فضایلو او محاسنو سره ډېر معایب او نقایص هم لري. دخیروشر، دصلاح او فساد ،د پاکۍ او نا پاکۍ متضاده جنبې په ده کښې موجود دي او د اضدادو مجموعه ده. حضرت مسیح (ع) او بودا هم انسانان و او چنګیز وهلاکو هم د انسان په بڼه و. د جوړولو او ورانولو دواړه استعدادونه په ده کښې شته او علم وجهل یې په وجود کښې د اسې خوا په خوا وسي لکه چه ابو جهل د حضرت محمد (ص) په ګاونډ کښې او سیده د انسان وجود خوله خاوروپیدا دی مګر د اورلمبې د اوبو څپې او دهوا طوفانونه پکښې خوندي دي. له خاکسارۍ سره کبر او غرور هم لري او له نرمۍ سره ئې دوسپنې صلابت ملګری دی. په رحم کښې یې قهر، په قوت کښې یې ضعف او په پوهه کښې یې ناپوهی ځان ښیي.

دغه عالم او عاقل موجود که دعقل او پوهې په مرسته دژوند ښه کولو وسایل او اسباب برابروي ورسره د اتم او هایدروجن بمونه هم جوړوي او په دواړو خواو کښې اسباب سازدی.

که له یوې خوا د بشري امراضو دپاره نوي علاجونه او نوي دواګانې کشفوي له بلې خوا د عالمي تباهۍ مواد او آلات تهیه کوي.

که د انسان ضعیفې او ناوړه جنبې اصلاح نشي او ښه استعدادونه پکښې ونه روزل شي له قوت څخه یې لیوان له عقل نه یې شیطانان او له شتمنۍ نه ئې طوفان پیدا کېږي. عقل د انسان ډېره لویه شتمني او د ټولو شتمنیو مور ده چه انسان ته ډېر څه ورکوي مګر له دغه دنیایي عقل سره یو بل عقل هم په کاردی چه هغه انسان ته سړیتوب ښيي او سړی کوي یې.

داعقل د دین په رڼا کښې پیدا کېږي او له دین څخه الهامونه اخلي. دا د معاد عقل او هغه د معاش عقل دی. دمعاش

عقل له هرچا سره شته او نورحیوانات هم پکښې څه نه څه برخه لري مګر د معاد عقل لکه عالي تعلیم تړلو ته نه دی رسیدلی.
ډېر غولېدلي دي هغه کسان چه دین له عادي او معمولي عقل سره برابر وي او دغې سطحې ته یې راټیټوي. ډېرښه پوهیدلي دي هغه خلک چه د عقل لوړولو کوښښ کوي او د دین عالي مقام ته یې او چتوي یعنې عقل متدین کوي او د دین په لاره یې برابروي. الهی کتاب (قرآن) د هغو متقیانو لارښوددی چه په غیب ایمان ولري. (یُؤمِنُونَ بِالغَیبِ) په غیب باندې ایمان پیدا کول د دغه ظاهربین عقل کارندی او دا عقل هېڅکله مومن کیدلی نشي. دا عقل د جسم او خېټې خدمت ته پیدا دی او دژوند پاللو مهمه وظیفه ورپه غاړه ده چه په انساني نړۍ کښې ډېرلوی ارزښت لري او دنیا یې مرهونه ده مګر د معقولاتو له سرحد نه هغه خواڅه لیدل او په څه پوهیدل دیوه بل عقل کاردی چه ملا خورشوی ندی او د عارفانو په برخه دی.
د پښتو ژبې عارف او صوفي شاعر عبدالرحمن بابا دغو دوو عقلونو ته په دې ډول اشاره کوي:

د دنیا په کارکښې هر سړی عاقل دی

چه سړی پرې سړی کېږي عقل بل دی

سړی څنګه سړی کېږي؟ دا سوال ښایي چه ظاهراً تحصیل د حاصل وګڼل شي او په ظاهري عقل برابر نه وي. مګر د بصیرت خاوندان پوهېږي چه ځینې سړي په معنوي لحاظ سړي ندي صورت به یې د سړي وي مګر سیرت به یې د سړي نه وي او د شر وفساد جنبه به یې ډېره غالبه وي.
د اسلام مقدس کتاب چه مطلق انسان ته په کرامت قایل دی د انساني فطرت په تشخیص کښې د غه د شر او فساد جنبه او د انسان شهواني غوښتني هرهرځای بیانوي او داڅرګندوي چه انسان باید د اخلاقي تهذیب او نفسي تزکیې په وسیله خپل انسانیت تکمیل کړي او واقعي انسان شي.
انسان د خدای خلیفه دی او د اسمان ملکې ورته په سجده پریوتې دي مګر انساني فطرت د ملایکو له خولې د اسې ښودل شویدی: (قَالُواْ أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاء البقره آیت ۳۰) یعنې په ځمکه کښې هغه څوک پیدا کوې چه په ځمکه کښې فساد کوي او وینې تویوي. سربیره په دې په ډېرونورو آیتونو کښې بشري طبیعت د اسې معرفي شویدی:

۱- (إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوعًا وَ اِذا مَسَّهُ الخَيرُ مَنُوعاً- سورة المعارج آیات ۱۹، ۲۰ او ۲۱)
یعنې انسان بی صبره، بې ثباته حریص او بخیل پیدا شوی که شر ور ورسیده جزع وفزع کوي که خیر او د دنیا مال یې و مومندنو بیا له ډېر بخل نه کار اخلی.
۲-(وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ - والعادیات آیت ۸) په دې آیت شریف کښې خیرد مال په معنی دی چه انسان ورسره ډېره شدیده مینه لري.
۳-(قُل لَّوْ أَنتُمْ تَمْلِكُونَ خَزَآئِنَ رَحْمَةِ رَبِّي إِذًا لَّأَمْسَكْتُمْ خَشْيَةَ الإِنفَاقِ وَكَانَ الإنسَانُ قَتُورًا - الاسراء آیت ۱۰۰) دا آیت انسان د اسې ممسک ښیي چه که د خدای د رحمت خزانې یې په برخه شي بیا هم ویرېږي چه د لګښت او مصرف په صورت کښې به تولې تمامې شي دا ځکه چه انسان ډېر حریص او ډېر بخیل دی.
۴- (كَلَّا إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَى ، أَن رَّآهُ اسْتَغْنَى - العلق آیات ۶،۷) انسان چه ځان غني ووینې اورمرو سرکښې او نافرماني کوي.
۵-(إِنَّ الإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ - ابراهیم آیت ۳۴) انسان هرګوره ډېرظالم او ډېر ناشکره بنده دی.
۶-(وَكَانَ الْإِنسَانُ أَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا - الکهف آیت ۵۴) انسان له هر څه نه زیات خصومت کوونکی او کج بحثه دی یعنې جدل یې په خټه کښې ګډ دی.

۷-(خُلِقَ الْإِنسَانُ مِنْ عَجَلٍ -الانبياء آيت ۳۷) انسان له بيړې او شتاب نه جوړ دی.

۸- ( وَكَانَ الإِنسَانُ عَجُولاً -اسرىٰ آيت ۱۱ ) انسان ډېربې صبره او الېته دی.

۹-(زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاء وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ......آل عمران آيت ۱۴) په دې آيتونو کښې هغه شهوانی مينې بيان شويدي چه انسان دهغو دپاره هر څه کوي او ځان اور اوبو ته غورځوي.

داسلام اخلاقي لارښودنې، دحرام مال غندنه، دنفسي خواهشاتو دپاره حدودټاکل، دقناعت اوصبرتوصيه، دعفت اوتقوی درسونه دهمدغو غرايزو اوانساني طبيعت د اصلاح او تعديل دپاره دي او په ډېر صحيح تشخيص بنا دي.

دا چه په قرآن کريم کښې دصبرتوصيه بيابيا په مکرر ډول هر هرځای شويده ددې دپاره نده چه سړی دظلم او ناروا په قبلولو کښې صابراوسي او مظالمو ته تسليم شي ياذلت ته غاړه کېږدي، بلکه ددې دپاره ده چه په سختوحالاتو او بدو ورځو کښې حوصله له لاسه ورنکړي اوله مشکلاتو نه ونه تښتي يادخپل عجولانه فطرت په تقاضاپه هرڅه کښې دومره بيړه ونکړي چه تفکر اوتعقل ته هېڅ موقع پاتې نشي او عاقبت انديشی هېره کړي.

دقناعت درس هم له حرامو څخه دځان ژغورلومعنی لري او دتجاوزمخه نيسي.نه داچه دکسب اوکارپه مقابل کښې دانسان لاس اوپښې تړي او سعی اوعمل ته يې نه پرېږدي.

دا راز آيتونه چه انساني فطرت اوفطري غرايز مشخص کوي او ددينې لارښوونو محوربې بللی شو نورهم ډېر دي چه دټولو لټون ډېر وخت اوډېر کارغواړي.

لوی خدای چه د انسان خالق دی او په نفسي وسوسو بې ډېرښه خبردی:(وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ -سورت ق آيت ۱۲) انسان په مطلق ډول زيانکار ګڼي اوهغه کسان مستثنی کوي چه مومنان او دنيک عمل خاوندان دي او نوروته هم دحق اوصبر توصيه کوي.

(وَالْعَصْرِ إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ) په عصرقسم دی چه انسان هرګوره په زيان کښې دی مګرهغه کسان ندي په زيان کښې چه ايمان يې راوړی اوکړي يې دي نيک کارونه، يوه اوبل ته ئې دحق توصيه کړې او دصبر توصيه يې کړېده.

دادی دانسان تشخيص او دعلاج نسخه.

داسلام دين دانسان داخلاقي اونفسي امراضو علاج د رياضت اوعبادت ،د زهد وتقوی، دنفسي او روحي تزکيې او تطهيرپه وسيله کوي او له حرامو څخه يې پرهېزوي.لکه چه دطب علم دبدني امراضو علاج کوي، دين داخلاقي مرضونو معالجه خپل اساسي هدف ګڼي او دبشر باطني رنځونه له مينځه وړي ځکه وايي:(اَلعِلمُ عِلمَانِ عِلمُ الاَبدَانِ وَعِلمُ الاَديَان) بدني طب په غذا او دوا وجود تقويه کوي او دتقويې په وسيله مرض مغلوبوي او محوه کوي ئې مګردين دنس اونفس په خوارولو اوضعيفولو دتقوی اوپرهيزګاری له لارې دشهوانی اونفساني امراضو مخه نيسي ياورسره مجادله کوي يعنی دنفس اوشيطان په مغلوبولو او دجسماني قوت په کمولو معالجه بنا کوي او لوږه يې هم غذا ده او هم دوا ده.

دهرچاچه حيواني قوت زياتېږي — نفس شيطان له هغومره مغلوبېږي
که څوک غواړي چه غالب شي په شهواتو — په مړښت نشي داکارپه لوږه کېږي

****

کموي روژه غوښتنې شهواني — مضمحل کړي هوسونه نفساني
د روژې غايه همدغه ده نوځکه — روژه نه نيسي صغيرشيخ فاني

دادی دعلم الابدان او علم الادیا ن د اساسي فرق یومثال چه مونږ دبدني طب او دیني طب په مغایرت پوهوي او دا یقین راکوي چه هغه شفا چه په قرآن کریم کښې شته:
(وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاء وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ -الاسراء آیت۸۲) (قَدْ جَاءتْكُم مَّوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَشِفَاء لِّمَا فِي الصُّدُورِ –یونس آیت ۵۷) هیڅکله بې دبوعلی سینا په شفا کښې نشو موندلی.
دنن ورځې عصري طب که دصدري او قلبي امراضو په علاج موفق هم شي او دشفاءالصدور دارو ومومي بیا هم نشي کولی چه (مافی الصدور) لره د شفا موجب شي او دحرص او حسد یا قلبي قساوت علاج وکړي او په بې رحمه زړه کښې رحم پیدا کړي.
په دغسې اخلاقي امراضو کښې ددنیا طبیبان له مریضانو نه ډیر بتر دي، او دا مرضونه په مترقي ممالکو کښې ډیر زیات دي.
(حُبُّ الدُنيَا اَوحُبُّ المَال) چه دټولو خطاګانو او غلطیو راس بلل شوی. (حُبُّ الدُنيَا رَاْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ) هغه بې علاجه مرض دی چه یوازې دین یې مخه نیولی شي.
په صدر اسلام کښې چه له دغه اخلاقي مرض سره مجادله شروع شوه، په مسلمانانو کښې دایثار داسې جذبه پیدا شوه چه خپل مالونه، کورونه او ډیر څه ئې ددین په لاره کښې یا د دین د پاره قربان کړه او په حرص او بخل داسې غالب شوه چه مقتصد عقل ورته ګوته په غاښ ونیوله، مهاجرینو په همدغه جذبه خپل اصلي وطن او ټوله شتمني په مکه کښې پرېښوده او مدینې ته یې ددین ساتلو د پاره هجرت وکړ او انصارو په همدغه جذبه په مهاجروباندې له ځانه زیاته پېرزوینه څرګنده کړه یعنې په نفسیاتي او اخلاقي لحاظ یو عظیم انقلاب په اسلامي امت کښې پیدا شو چه نظیرئې چا نه و لیدلی.
ددغه انقلاب اثر تر اوسه په مسلمانانو کښې لږ او ډیر یو ځای بل ځای وینو او په یو زړاو څوسوه کاله کښې یې نښې نښانې لا ندي محوه شوي چه رحمن بابا یې هم په وصف الحال کښې وائي:
داهنرندی چه خاورې څوک سره زر کا          چه زر خاورې کړي رحمانه هنر دادی
علوم اوفنون خلکوته دا هنر ښیي چه خاورې زرکړي او ددنیا شتمني زیاته کړي مګر دین ورته ددغه هنر بل اړخ څرګندوي او په دغه ډول انسان له دواړو هنرونو سره اشنا کوي.
د انفرادي او اجتماعي ژوند موافقه او مصالحه په همدې راځي چه دغه دواړه هنره دانسان په برخه شي چه هم خاورې زرکړي او هم زرخاورې کړي. که څوک لومړی هنر ونلري دوهم هنر یې نه نصیب کېږي چه زر نه وي نو زربه څنګه خاورې کړي؟ که اول هنر ولري او دوهم هنر پکښې پیدا نشي لومړی هنربه هرګوره منفوراو مردود وي دا څرګنده ده چه علم وفن، صنعت او حرفت دژوند او معیشت حاجتونه او ضرورتونه پوره کوي او مدنیت ته رنګ او رونق ورکوي. ددنیا ودانی اوزیبائي په هغه وسایلو او اسبابو پورې تړلې ده چه دعلم وفن په مرسته لاس ته راځي او لاس ته راغلي دي مګر دین دتساند او تعاون په پیدا کولو او دمعنوي ارتباط په قایمولو دبشري جامعې سعادت تامینوي او داجتماع مزې تېنګوي.
دبشري سعادت لوښی او ظرفونه دعلم اوصنعت په کارخانو کښې جوړېږي مګرپه دغو لوښو کښې دحیات او به د دین ساقي اچوي اودین دی چه داخلاقو په تهذیب انساني باغ و بڼ له وحشي بوټو دربو اوکبلونه ساتي او دښو بوټونیلې اوریښې تقویه کوي.
که اخلاقی تهذیب او دنفس تزکیه نه وي کیدی شي چه ډیر ژر دجهان سمسور باغونه په هغو ځنګلونو بدل شي چه ځناور او وحشي حیوانا ت پکښې استوګنه کوي او ماران پکښې اوسېږي.
کیمیاوي پوهه مونږ ته هغه صابونونه په لاس راکوي چه دبدن او جامو خیرې اوناپاکی وړي او دلباسو نو توري لکې محوه کوي.

مونږ دغي پوهي او دغو صابونونو ته حياتي ضرورت لرو او په ډېر بنه ارزښت ورته قايل يو مګر هغه خيري، کثافتونه او خباثتونه چه په زړه او دماغ په نظر او احساس کښې پيدا کېږي ديني پوهه او داخلاقو کيمياېي سعادت ته شديد ضرورت لري او بل صابون ورته په کار دی چه هغه د انسان کبر او غرور د زړونو کينه او قساوت حسادتونه او شرارتونه له مينځه وړي او دهوی ٰ وهوس ناولتيا پاکوي.

که دانسان باطن پاک نه وي او په اخلاقي مفاسدو لړلی وي نو د سر و صورت ظاهري سپين والی او پاکوالی خو لولی هم لري او دمتمدنو خلکو سپي هم هره ورځ په صابون مينځل کېږي.

دين يوازې دغه راز نظافت او طهارت کافي نه بولي او ظاهر بين ندی، داسلام سپيڅلی دين دطهارت او تزکېې په باب ډېر عميق او دقيق نظر لري او له ظاهر نه بې باطن ته توجه ډېره زياته ده مګر له ظاهر نه هم صرف نظر نکوي او په ارزښت ورته ګوري.

داسلام په دين کښې چه ژوره څيړنه وکړو په نهائي تحليل کښې دې نتيجو ته رسېږو چه داسلامی هداياتو او ارشاداتو اصلي او اساسي هدف دنفس تزکيه او دجسم او روح تطهير يعني پاکوالی دی.

تزکيه او تطهير هغه ټکي دي چه په قرآن کريم کښې په مکرر ډول راغلي دي او معنی ٰ يې ډېره عامه او هم ډېره عميقه ده.

په دې ټکو کښې له هر راز نجاست خباثت او کثافت نه دجسم او روح ظاهري او باطني طهارتونه شامل دي چه داخلاقو تهذيب او د انسانيت لوړول يې لازمي نيتجه ده.

اديان عموماً پداسې وخت کښې دنياته راغلي دي چه انساني اخلاق ډېر فاسد شوي او انسانيت ډېر ټيټ شويدی يعنی ددين ډيوه هروخت په تورتم کښې بله شويده او خلکو هغه وخت ځانونه مينځلي دي چه ډېر خيرن شويدي.

داسلام د ظهور په وخت کښې هم د عربو مختلف او مخالف قبايل په اخلاقي او روحي لحاظ په ډېرو مرداريو ککړ و او په ډېر تورتم کښې يې ژوند کاوه، فحشا او منکر نهائي حد ته رسيدلی و دحلال او حرام فرق نه و، دخير و شر معيار ازلام يعني دفال غشي و، دخدای کور بتانو نيولی و، دښځو او نرو بربنډ طوافونه طاعت او عبادت ګڼل کيده.

شرک، بت پرستي، سودخوري او چوروچپاو، قتل وقتال، شراب او قمار، لوڼې ژوندی خښول، ضعيفان غلامول او د حيواناتو په څېر يې استعمالول دژوند دود او دستور و، په دغسې وخت او دغسې ځای کښې حضرت محمد (ص) ته دخدای له لوري جبرئيل امين داوحی راوړه:

(يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ .......المدثر آيات ۵-۱ ) يعنی له بړستني پاڅېږه خلک له خدايه وويروه، خپل رب لوی وګڼه جامې دې پاکې کړه او پليدي لرې کړه.

په دې وحی کښې دتطهير مکرر امر دا ښيي چه پاکيدل او پاکول په عام وتام ډول داسلام اصلي او اساسي منظور دی.

(رجز ) په لغت کښې دګناه په معنی ٰ، دبت پرستی په معنی ٰ او دپليدی په معنی استعمالېږي او مفهوم يې ډېر عام دی.

پيغمبر(ص)ته اول دجامو پاکولو امر وشو چه دځان پاکولو امر پکښې دلالتاً موجود دی ځکه چه پاک کالي په پاک بدن اغوستل کېږي په دغه ظاهري پاکوالي پسې په بل آيت شريف کښې له ( رجز ) څخه لريوالی باطني پاکوالی دی چه له شرک او اخلاقي مفاسدو نه د زړه او روح صفائي ايجابوي.

دغه آيتونه چه دنزول په اعتبار يې دقرآن کريم مطلع ګڼلی شو دتطهير او تزکيې اهميت ډېر بنه ثابتوي او مونږ پدې پوهوي چه په اسلام کښې دمراد ټکی دی.

په سورت(الاعلی) کښې دادوه آيتونه(قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّى وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى آيات ۱۵-۱۴ ) اول تزکيه او بيا دخدای ذکر او لمونځ دفلاح موجب ګڼي.

دلته تزکیه یوازې دتن او جامو هغه پاکوالی نه دی چه دلمانځه شرط ګڼل شوی ځکه چه د دغه لغت په معنی کښې اول معنوي پاکي او اخلاقي تهذیب او بیا ورسره ظاهري او جسماني پاکوالی مقصد دی. دفلاح کلمه په قرآن کریم کښې کله دمفلحون په صورت او کله په (قد افلح) کښې ډېره راغلې ده چه معنی یې بری او مقصد ته رسیدل دي.

په صورت (المومنون) کښې په لومړیو نهو آیتونو کښې دمومنانو دفلاح موندلو دپاره څو شیه ذکر شویدي چه یو یکښې لمونځ او په لمانځه کښې خشوع، او خضوع ده. آیتونه دادي:

(قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ وَالَّذِينَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُونَ وَالَّذِينَ هُمْ لِلزَّكَاةِ فَاعِلُونَ وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ إِلَّا عَلَى أَزْوَاجِهِمْ أوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ فَمَنِ ابْتَغَى وَرَاء ذَلِكَ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْعَادُونَ وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ وَالَّذِينَ هُمْ عَلَى صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ) یعنې هغه مومنان بری مومي او مقصد ته رسېږي چه په لمانځه کښې وېره او تواضع ولري، له بیهوده خبرو او کارونو څخه ډډه وکړي، دمالونو زکات وباسي له زنا او فحشا څخه ځان وساتي، امانت خیانت نکړي په عهد ولاړ وي او په لمانځه ټینګ وي.

په صورت اعلی کښې چه یوازې تزکیه او لمونځ دفلاح موجب ښودل شوي او په صورت مومنون کښې شپږ یا اوه شیه وښودل شوه تطبیق یې پدې شان کیدی شي چه تزکیه ډېره عامه وسعیه معنی لري او په دغو ټولو صفاتو او افعالو دلمانځه په شمول حاوي ده.

زکات خو دلفظ او معنی په اعتبار له تزکیې سره اشتقاقي تړون لري او زکات هم ورته ځکه وائي چه دزکات په ورکولو هم مال او هم زکات ورکوونکی له بخل څخه پاکېږي، لکه چه په سورت توبه کښې پاک خدای رسول الله (ص) ته امر کوي چه دمسلمانانو له مالونو څخه صدقه قبوله کړه چه دوی پرې پاک شي (خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا التوبه آیت ۱۰۳) زنا او فحشا هم یو مردار عمل دی او ځان ساتل ترېنه تزکیه ده ځکه پښتانه هم دغسې سړي ته پاک لمنی وائي.

په امانت کښې خیانت کول، عهد ماتول، بیهوده مشغولتیا هغه ناوړه او ناولې صفتونه دي چه له خبث باطن څخه نشات کوي.

لمونځ هم سړی له ګناه څخه پاکوي او دتزکیې معنی لري ځکه د اهتمام په وجه په مستقل ډول ذکر شویدی، دخدای پاک په کتاب کښې عمومي مطالعه داښیي چه دتزکیې کلمه په ټولو ظاهري او باطني طهارتونو مشتمله ده ځکه دسورت (الشمس) په دې آیت کښې (قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّاهَا) یوازې دنفس تزکیه دفلاح وسیله ښودل شویده.

په سورت (التغابن) کښې داآیت شریف: (وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفسِهِ فَاُولٰئِكَ هُمُ المُفلِحُون) دعبارت په تغیر هماغه کسان مفلحون ګڼي چه نفسونه یې له بخل څخه پاک وي او دنفس تزکیه یې په برخه وي. همدغه تزکیه ده چه هم دخدای دپاره دمال په ورکړه حاصلېږي لکه چه په سورت (اللیل) کښې وایي: (وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّى آیات ۱۷-۱۸) یعنې د دوزخ نه به په څنګ وي هغه پرهیزګاران چه خپل مال دځان دپاکولو دپاره ورکوي او هم له حرامو څخه په سترګو پټولو او له فحشاء نه په ځان ساتلو دمومنانو نصیب کېږي لکه په سورت (النور) کښې چه راغلی دی: ( قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ آیت ۳۰) دفلاح ارتباط تزکیې او طهارت سره په قرآنکریم کښې ډېر ټینګ ښودل شوی یعنې له پلیدیو څخه ځان ژغورل فوز او فلاح ته رسیدل دي.

پلیدي یوازې ظاهري نجاست نه دی ګناه او معصیت هم د قرآن کریم په حکم (رجس) ګڼل شویدی لکه په سورت (المایده) کښې چه وائي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنصَابُ وَالأَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ آیت ۹۱) یعنی شراب، قمار، بتان او په غشو فال نیول پلید شیطاني عملونه دي او ځان ساتل ترېنه دفلاح موجب دی.

دخلکو ظاهري او باطني پاکول ( تزکيه ) دپيغمبر وظيفه ده لکه چه په سورت البقرةکښې راغلي دي:
(كَمَا أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولاً مِّنكُمْ يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ آيت۱۵۱ ) په دې آيت شريف کښې ( ويُزکيکم ) په ډېر وضاحت او صراحت دامفهوم اداکوي چه رسول الله(ص)تاسو پاکوي او دهمدغه مقصد دپاره استول شويدی.

په يوه بل آيت کښې هم دغه مطلب ډېرښه څرګندوي چه وايي: (رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولاً مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ البقرة آيت ۱۲۹ ) دلته حضرت ابراهيم او حضرت اسمعيل دعا کوي اوله خدايه غواړي چه ددوي په اولادونوکښې رسول مبعوت شي چه په دوی دخدای پاک آيتونه ولولي، په کتاب اوحکمت يې پوه کړي اوپاکيزه يې کړي.

په سورت ( النازعات ) کښې هم راغلی دی چه الله تعالی موسی (ع) ته ويلي و: (اذْهَبْ إِلَى فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَى فَقُلْ هَل لَّكَ إِلَى أَن تَزَكَّى آيات ۱۸-۱۷ ) فرعون ته ورشه !.........او ورته ووايه آيا ميل لرې چه تزکيه دې نصيب شي. دموسی(ع) په بعثت کښې هم د رسالت غايه ( تزکيه ) ده له دغوشواهدونه ښائي چه دامطلب ډېر ښه ثابت شوی وي چه دخلکو تزکيه او تطهير ددين کاردی او پيغمبران دهمدغه کار د پاره وخت په وخت استول شويدي چه دخلکو فاسد اخلاق اوناوړه عادتونه سم کړي، په زړونوکښې يې صفائي او دخير او احسان مينه پيدا کړي په نفسياتی حالاتو او کيفياتوکښې دانسانيت په ګټه ښه بدلون راولي اوپه اجتماع کښې نوي روحيه خلق کړي مګر دا کاريعني دنفس تزکيه او داخلاقو مهذب کول څه اسانه او ارزانه کار نه دی.

داجتماع په اخلاقو او عرف وعادت کښې بدلون راوستل او دزړو عقايدوپه ځای نوي عقايد په ذهن کښې کښينول دهغو بتانوماتول دي چه حضرت ابراهيم (ع) يې دنمرود سرولمبوته وغورځاوه او حضرت مسيح يې په سولۍ وخيژاوه.

دخلکو اجتماعي اخلاق که هر څومره فاسد اوکاسدوي او زاړه عقايد که هرڅومره خرافاتي وي بياهم دجامعې په ذهن او دماغ بې قيد وشرط حکومت کوي او مخالفين يې په فنامحکومېږي.

يوشخص که هرڅومره مقتدرسلطان وي عمر يې لنډوي او زمانه ډېر مهلت نه ورکوي مګر اخلاق اوعقايد خپل حاکميت له يوه نسل نه بل نسل ته په ميراث پرېږدي او څومره چه زړېږي هغومره قوي کېږي.

زمانه چه کاريې تغير راوستل دي ددغه ذهني سلطان مقابله په ايوبي صبر کوي او دنوح عمر غواړي ترڅو چه غير مرئي تدريجي تغير پکښې راولي او له نظره نشی. په انقلابی ډول د زاړه اجتماعي نظام نړول او نوی دين په خلکو منل د اولوالعزمه پيغمبرکاردی چه په خپل سر اره قبلوي او دغه کارسرته رسوي.

حضرت محمد (ص) ددغه جهاني اجتماعي انقلاب په سرته رسولو کښې دډېروکړاوونو په قبلولو خپل مشکل رسالت په ځای کړاو په ډېروسختو خطرناکو حالاتو کښې يې صبروا ستقامت له لاسه ورنکړ داځکه چه په خپل نبوت او رسالت يې ډېر ټينګ ايمان درلوداو دغه قوي ايمان په ده کښې خارق العاده روحي قدرت پيدا کړی ؤ دا ايمان د په نورو کښې هم پيدا کړ چه مومنان يې په جهان مسلط کړه او عمومی حالات يې بدل کړه. دخدای کور ( کعبه ) يې له بتانو پاکه کړه دخلکو زړونه او دماغونه يې صفا کړه، اجتماعي مفاسد اوناولي عقايد يې محوه کړه او سيئات يې په حسناتو له مينځه يوړل.

کوم امرچه پاک خدای حضرت ابراهيم(ع)او حضرت اسمعيل (ع)ته دخپل کورد پاکولو په باب کړي و: (وَعَهِدْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ البقرة آيت ۱۲۵ ) دا امر په خپل وخت کښې حضرت محمد (ص)هم په ځای کړ او چه خلک يې له شرک اوبت پرستی نه پاک کړه نو بيا يې قرآن کريم پاکانو او

مطهرونو ته پـه لاس ورکړ: (إِنَّهُ لَقُرْآنٌ كَرِيمٌ فِي كِتَابٍ مَّكْنُونٍ لَّا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ الواقعة آيات ۷۹-۷۷) ددغه کتاب دنیولو دپاره پاکې منګولې په کارويې او طهارت ته ضرورت و.

داطهارت دخدای پاک پـه اراده اول لـه اهل بیتو څخه شروع شو: (إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا الاحزاب آیت ۳۳) لکه چه په (وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ الشعرا آیت ۲۱۴) کښـې هم اهل بیت خاص ډول یاد شویدي.

داهل بیتوله تطهیرسره د امت تطهیرهم شروع شو او خلک د وحدانیت په منلو دصالحو اعمالو پـه اجراکولو داخلاقو په تهذیب او دنفس په تزکیه له کفر او عصیان څخه پاک شوه.

ددیني پوهانو له جملې څخه یوتن (شاه ولی الله) وایي: پیغمبران داخلاقو، تهذیب او نفس تزکیې تـه توجه لري او پـه علمي مسایلو کښې مستقیم دخالت نکوي، مطلب دا چه پیغمبر دعلم او فلسفې معلم ندی د انسانیت مربي او اخلاقي رهبردی ځکه دنفس تزکیه او دروح تربیه خپل هدف ګڼي او وایي:

(بُعِثتُ لِأُتَمِّمَ مَكَارِمِ الأَخلَاق) الله تعالی هم د ستاینه په خلق عظیم کوي: (وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ القلم آیت ۴)

ددې دپاره چه خلک سړي شي او سړیتوب زده کړي باید پیغمبرپه خپله دکامل انسانیت مثـل اعلی شي او خپل عـالي کردار د هغوی دپاره سرمشق وګرځوي یعنې په عملي ډول خلکوته دصبر و استقامت، درحم او شفقت، دعدل او انصاف دایمان او احسان، دصدق وصفا، دایثار او قربانۍ او دشجاعت او شهامت ګران ګران درسونه ورکړي او داثابتـه کړي چه انسانان دعزم او ارادې دروحي قـوت او قـدرت پـه مرسته پـه جهان کښـې څومره لوی بدلون راوستلی شي. امت جوړول او تربیه کول او دامامت وظیفه عملي جهاد او مقاومت غواړي.

په خلکو باندې دژبې په سر یو څه زده کول دومره ګران کارندی مګر په خلکو کښې څه پیدا کول، پـه زړونـو کښـې بې څه کښېنول او په دماغونو باندې دنوو عقاید و منل دهرچا کارندی.

یو سړی کولی شی دالفاظو او کلماتو پـه وسیله خلکوتـه دعفت، تقوی او ریاضت مفهوم او معنیٰ توضیح کړي یا مقالې او رسالې پرې ولیکي او کتابونه ترې جوړکړي مګر خپل ژوند ددغو صفاتو او حالاتو مظهر او مثال ګرځول او د کردار په هنداره کښې بې تمثیلول ځان خوارول او له نفس و شیطان سره مجادله او مبارزه غواړي.

که څوک چاته داخلاقو درس ورکوي دا نده لازمه چه پـه خپله دې ښـه اخلاق ولـري بلکـه یـوازې همدغـه کافي ده چه د اخلاقو پوهه ولري مګر هغه څه چه په خلکو کښې اخلاقي فضایل پیدا کوي نو بیا په کاردي چه پخپله بې هم ولري یعنې اول بې په ځان کښې پیدا کړي بیا بې په نورو کښې د پیدا کولو کوښښ وکړي.

د اخلاقي امراضو طبیب دبدني امراضو دطبیب په شان نه دی. کیدی شي چه دقلبي امراضو طبیب په خپله قلبي مرض ولري او په دغه مرض اخته وي، یو سودخور که دمنبر په سر سود هرڅومره وغندي او قرض حسـن هرڅومره وستایي پـه چا باندې ښه اثر نه کوي. که بې حیا سړی نوروته دحیا درس ورکوي دا په خپله لویه بې حیایي ده.

پاک خدای اسلامی امت پـه امر معروف مـامور کړیدی مګر هغـه واعظان او ناصحان بې تهدید کړیدی چه نوروتـه دنیکۍ امرکوي او ځانونه بې هیروي: (أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ البقره آیت ۴۴) که دغه ایت یو بې لاري سړی له دینه نه وي منع کړی چه نور سمې لارې ته راوبولي بللی بې شي مګر پـه سمه لارئې بیولی نشـي. خلکوتـه دحق توصیه او دصبرتوصیه باید لـه قرآنی ترتیب سره سم هغـه مومن وکړي چه دصالحو اعمالو خاونـد وی: (وَالْعَصْرِإِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ العصـر) تـش پـه ژبـه امرمعروف ډېر ګران کارندی مګر د امرمعروف اهلیت او صلاحیت په ځان کښې پیدا کول له ګران نه ګران کار دی.

حضرت محمد (ص) چه ډېر عالم بې په سمه لار وخوځاوه او ډېر عالي اخلاق بې په خپلو پیروانو کښـې پیدا کړه یو مهم علت بې دا و چه په خپله دکامل انسانیت او خلق عظیم خاوند و او په همدغه حقیقی معجزه بې عالمونه مسخر کړه.

کوم کسان چه معجزه د نبوت شرط ګڼي او معجزه د علت او معلول له سلسلې نه بهر خارق العاده امر بولي نو د شق القمر یاد معراج مسئله مطرح کوي حال دا چه د رسول الله (ص) عظیم خلق د اسې عظیمه معجزه ده چه په دنیا کښې نظیر نلري او انکار ترېنه نشي کیدی.
ځینې خارق العاده کارونه شته چه د سحر و افسون په وسیله دیوه او بل له خوا وخت په وخت ښکاره کېږي او د حیرت وړ ګڼل شوي دي لکه چه مشهوره ده چه عبد الله بن مقنع (حکیم بن عطا) د نخشب په شا وخوا کښې له یوې څاه نه د سپوږمۍ په شان رڼا را ویستله او ښلو رفرسنګو پورې يې ځمکه رڼا کوله او مزدک هم یوه د اسې وسیله را پیدا کړې وه چه له اورڅخه به خبرې او ریدل کیدی.
د اوسنی علم مطابق د مسمریزم او هیپنو تیزم په بنا ځینې د تعجب او حیرت وړ کارونه کیدی شي د دې عصر الوتکې او فضائي بیړۍ هم د سلیمان علیه السلام له هوا پیما تخت سره يې شباهت ندي مګر هغه لوړ اخلاقي معیار چه حضرت محمد صلی الله علیه و سلم په خپل کردار قایم کړ او انسانیت يې معراج ته ورساوه هغه حقیقي او واقعي معجزه ده چه تقریباً په یو زر او څلورسوه کالو کښې يې خپل اعجاز ساتلی دی.
د معجزې په اوو شرطونو کښې یو شرط دا دی چه له دعوې سره دې موافقت ولري یعنې که څوک دا دعوه کوي چه زه خلک سمې لارې (صراط المستقیم) ته رابولم او مفاسد له منځه وړم او د رسالت یا نبوت دلیل (معجزه) مې دا ده چه خاورې زر کومه نو دا کار معجزه نشو ګڼلی ځکه چه له دعوې سره څه ارتباط نلري مګر دا چه حضرت محمد صلی الله علیه و سلم عملاً خپل ځان د ډېر لوړ کردار په لرلو د مثال اعلی په حیث د امامت وړ و ښود او د خلکو په اخلاقي او نفسي حالت کښې يې معجزه آسا بدلون راوو ست، د ده د رښتیانی ادعا ډېر ښه ثبوت دی. انس بن مالک وايي: زه لس کاله د رسول الله (ص) په خدمت کښې وم او په دغه دومره موده کښې يې ما ته کله (اف) هم ونه ویل څه مې چه کړي نه يې دي ویلي چه ولې دې وکړه، کوم کار مې چه ندی کړی بیا يې هم داندی ویلی چه ولې دې ونکړ، له یوه خدمتګار سره په لسو کالو کښې دغه شان سلوک کومه عادي او وړه خبره نده ښائي چه ډېر علم او تربیت خاوندان هم له خپلو ډېرو ګرانو زامنو سره دغه شان رویه ونکړی شي چه په لسو کالو کښې ورته (اف) قدرې هم ونه وايي. دا کیدی شي چه یوه زړه سواندي مهربانه سړی کله دعفوې او حلم ډېر عالی مثال قایم کړی حتیٰ چه د خپل ځوی قاتل یا خپل قاتل د مرګ د سلګیو په وخت کښې معاف کړي مګر ټول عمر په مختفلو احوالو کښې دغو مره ضبط نفس او په نفسي حالاتو تسلط لرل خارق العاده امر دی.
د احد په جنګ کښې چه د حضرت محمد (ص) غاښ مات او مبارک مخ يې زخمي او کړم شو نو اصحابو د ډېر قهر په وجه له دوی څخه وغوښتل چه د دښمنانو د تباهۍ دعا وکړي او لعنت پرې ووائي مګر رسول کریم صلی الله علیم و سلم وفرمایل زه دلعنت ویلو او ښیرو کولو د پاره نه یم راغلی بلکه د رحمت په حیث سمې لارې ته د بلنې د پاره استول شوی یم. (اَللّٰهُمَّ اِهدِ قَومِی فَاِنَّهُم لَایَعلَمُونَ). د هغه چا معافول چه په رسول الله صلی الله علیه و سلم باندې يې د قتل په اراده توره راوا یستله، هغې یهودۍ ښځې ته سزا نه ورکول چه د پسه په غوښه کښې ئي ورته زهر ګډ کړي و او په خپل جرم ئي اعتراف هم وکړ د عفو او بخښنې برجسته مثالونه دي.

## جود او سخا:

د رسول الله (ص) کرم او سخاوت د کیفیت او کمیت په لحاظ ساري نلري، او د خپلو خصوصیاتو په وجه ئي منحصر بفرد صفت ګڼلی شو بلکه ویلی شو چه سخاوت نه وایشا رو چه مقام او منزلت يې له سخاوت نه ډېر لوړ دی.
له خپل ډېر مال نه لږ څه نورو ته ورکول یا له خپل حاجته زیات مال صدقه کول جود او سخا بللی شو مګر ځان محرومول، خپل نفس خوارول او نور مړول بلکه غني کول هماغه صفت دی چه په قرآن مجید کښې يې ستاینه شویده: (وَيُؤْثِرُونَ

عَلَى أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ الحشر آیت ۹ ) هغه درياضت او دمشقت ژوند چه رسول الله(ص)درلوده له حده زیات فقیرانه او غریبانهؤ مګر دا د بیوسی په وجه او دمجبوریت له مخې څخه نه و بلکه اخلاقی غایه او پایه بې در لوده او همدغه قرآنی منظور پکښې مضمرو.
قرآنی فلسفه ډېر شخوند او ډېر خوند ژوند مردودګڼي ځکه مترفين او د ناز اونعمت خاوندان په مکرر او موکد ډول غندي او بد ورته وايي قرآن کريم په ډېر وضاحت اوصراحت بډايان او متمولين دهر ديني نهضت او ارتقائي حرکت په مخکښې سدګڼي او د زاړه ارتجاعي حال محا فظين بې بولي.
هغه اسلامي ژوند چه الهی کتاب اونبوي سنت بې دمسلمانانو دپاره خوښوی که مسلمان بې په ځان باندې تطبيق کړي طبقات له مينځه ځي او دغني اوفقير مسئله په ښه شان حل کېږي.
د رسول الله(ص)دژوند عملي اړخ همدغه وچه د دنيا مال بې لکه غليم خپل کورته نه پرېښوده اونه ئې په کورکښې ځای ورکاوه هرڅومره مالونه به چه ورته راغله په فقيرانو اومستحقينو به بې ويشل اوتش دقوت لايموت په اندازه بې ډېرلږ څه ځانته ساتل مګر څومره چه په ځان سختګير و هغومره په نورو زهير واو بخششونه بې بې حسابهؤ. وايي چه دحنين په ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم صفوان بن اميه ته دپسونو دومره رمې وبښلې چه يوه لويه دښته پرې ډکه شوه.
په همدغه ورځ بې ابو سفيان ته ځلوينښت اوقيې سپين زراو سل اوښان ورکړه د هغه زامنو معاويه اويزيد ته او حکيم بن حزام ته بې هم سل سل اوښان وبښل، مګر حکيم بن حزام سل اوښان نورهم وغوښتل او هغه بې هم ورکړه.
دغه شان نورډېرو کسانو ته لکه: نصر بن حارث، اسيد بن جاريه، حارث بن هشام، قيس بن عدي، سهيل بن عمر حويطب بن عبدالعزی اقرع بن حابس عينيه بن حصن، مالک بن عوف، عباس بن مرداس، مخرمه بن نوفل، علا بن حارثه سعيد بن يربوع، عثمان بن وهب او هشام بن عمرته په دغوبخششونو کښې چاته سل چاته پنځوس اوچاته ځلوينښت اوښان ورسيدل اوعباس ته خوئې دومره سره زر ورکړه چه جګولی بې نشوه، پدې دومره ډېرو مالونو کښې رسول الله(ص)پخپله خپل کورته هيڅ يونه وړل او اهل بيتو دغه شپه په نهره تېره کړه.
ايا خپل ځان په مطلق حرمان کښې ساتل اوپه نوروباندې دکرم او احسان بارانونه ورول معجزه نده؟ څوک چه په يوه ورځ دغومره فياضي لري کله چه له دنيانه رحلت کوي هرچاته داڅرګندېږي چه په کورکښې بې داوربشو له ډوډۍ پرته نورڅه نشته اود جنګ زغره بې په يوه يهودي دکورد نفقې دپاره ګروکړيده، دغه راز غيرعادي ژوند چه انساني غرايز بې مهار کړي و او عادي عقل ورته حيران حيران کتل خارق العاده امر دی.
دشرک اوبت پرستی په وطن کښې دعربو مختلف اويوله بله مخالف قبايل چه لوښې به ئې ژوندي خښولې او ابوجهل بې دجهالت سمبول و دا ټول دتوحيد په يوه کلمه راغونډول او يو داسې ملت او امت ترېنه جوړول چه اسلام په اسيا ، افريقا او اروپا کښې خپورکړي او دجهان دين اوآئين بدل کړي که معجزه نه وي نو څه به وي؟
دا منوچه فاتحين او جهانګيران په دنيا کښې ډېرپيدا شوي چه خپل پريوتې اوبې نام ونشانه قوم بې تاريخ ته بريالی او توريالی ښودلی او خپله امپراطوري بې په نوروقهراًمنلې ده مګر ديوه ملت معنوي اوروحي سويه لوړول په اخلاقو کښې لوی بدلون راوستل او انسانيت معراج ته رسول دچنګيزاوهلا کو ، داسکندر او ناپليون کار نه دی.
حضرت محمد صلی الله عليه وسلم چه نه سړي ئې سړي کړه او سړي بې ملکوتي مقام ته ورسول دداسې معجزې خاوند دی چه بشري تاريخ بې کامل مثال نشی ښودلی.
په زور او قوت ډېرخلک غلامول کوم خارق العاده کارنه دی غلامان ازادول اودضعفيانو مرسته که څه هم دخير و احسان عالی مثال دی مګر اعجازندی، خوغلامان اوضعيفان له سردارانو او سرکردګانو سره برابرول بلکه په هغوی باندې بې لوړول او يو حبشي دنيک عمل په وجه له قريشي نه ښه ګڼل محمدي معجزه ده.

## زيدبن حارثه:

درسول الله(ص) په مواليوکښې زيدبن حارثه زيات شهرت لري، دی دبی بی خديجې غلام و چه رسول الله(ص) ته بې بخښلی و. رسول الله(ص) هغه ازاد کړاو خپل ځوی بې وګاڼه ځکه به خلکو زيدبن محمد باله ترڅو چه داآيت: (أُدعُوا هُم لِآبَائِهِم ) نازل شو او پس له هغه زيدبن حارثه وبلل شو.

کله چه دزيد پلار حارثه او تره بې کعب دزيد په لټون مکې ته راغلل او دی بې له حضرت محمد (ص) سره وموند نوله رسول الله صلی الله عليه وسلم نه بې خواهش وکړچه زيد دوی ته وسپاري حضرت محمد (ص) وويل که زيد له تاسوسره ځي هېڅوک بې مخه نه نيسي مګر زيد تګ ته غاړه کښېنښووده او رسول الله(ص) بې ترهرچا بهتر وګاڼه.

موالي که څه هم له غلامۍ څخه ازاد ومګر بياهم عربو مخصوصا قريشو خپل سيالان نه ګڼل او دکفائت له نعمته محروم و.

دمواليو له جملې څخه هيچا ته داحق حاصل نه و چه دقريشو خور يا لور په نکاح کړي او دهغوی اشرافيت ته صدمه ورسوي.

رسم و رواج پدې کار ډېر سخت بنديزلګولی و مګر حضرت محمد (ص) په اسلامی تعليماتو ټول خلک اسلامی اخوت ته رابلل او هر راز امتيازات او تبعيضونه بې له مينځه وړل يوازې تقوی اونيک عمل بې دفضيلت معيار ګاڼه اوبس. ځکه بې دخپلې ترور لور ( زينب دجحش لور ) زيد ته په نکاح کړه او دعرف او عادت بت بې مات کړ. داکار په هغه وخت کښې له هغه اشرافی ذهنيت سره له معجزې نه کم نه و. هغه وخت لا څه چه اوس به هم په امريکا غوندې ازاد اومترقي هيواد کښې څوک حاضر نشي چه له يوه تور پوستکې سره دغه راز معامله وکړي.

حضرت محمد (ص) په خپله کورنۍ کښې دغه تبعيض او امتياز له مينځه ويوړمګر هغه توافق چه دښځې او ميړه ترمينځ په کاردی اوپه نفسياتي کيفياتو پورې تعلق لري د زيد او زينبې ترمينځ موجودنه وه ځکه دغه ازدواج تراخرعمره دوام ونکړ اوڅه موده وروسته زيد دزينبې دپرېښودوپه باب خپله اراده حضرت محمد (ص) ته ښکاره کړه دوی ورته دعقد د دوام توصيه وکړه مګر زيد دخپل معذرت په وړاندې کولو اصرار وکړ او داعقد فسخ شو.

رسول الله(ص) دخدای په امر بي بي زينب ځانته په نکاح کړه چه په دغه وسيله دهغې په زخمې زړه ډېره ښه پټۍ ولګيده.

ديوه ازاد شوي غلام مطلقه په نکاح کول يوبل اخلاقي درس وچه خپلو پيروانو ته بې ورکړاو ددغه کار عار بې له مينځه يووړ.

دزيد بن حارثه خبره په همدغه ځای نه تماميږي کله چه رسول الله(ص) درې زره مسلمانان د موته ښارته چه په شام پورې مربوط ؤ دغزا دپاره لېږل او دا دمسلمانانولومړی جنګ و چه دهجرت په اتم کال د روم دقيصر له امير اومسيحيانو سره کيده نو د دغه اسلامي لښکر امير د رسول الله(ص) لخوا زيدبن حارثه وټاکل شو.

په دې لښکر کښې جعفر بن ابيطالب دحضرت علی کرم الله وجه وررور او د پيغمبر دتره زوی، عبد الله بن رواحه، خالدبن وليد دعربو مشهور قهرمانان او نور قريش شامل و يعنې دقريشو سرداران چه جنګی مهارت اوقابليت بې درلود دزيد سپايان و.

## اسامة بن زيد:

دزيد بن حارثه زوی اسامة هم رسول الله(ص) دمسلمانانو دهغه لښکر مشر وټاکه چه د روم غزا ته بې لېږه پدې لښکرکښې مهاجرين او انصارپه ډېرزيات شمير شامل واو په دغه حمله کښې حضرت ابوبکرصديق (رض) حضرت عمر(رض)، سعدبن ابی وقاص غوندې لوی لوی شخصيتونه داسامة له فرمان لاندې و.

د اسامة عمرپه دغه وخت کښې له (۱۷) کالونه زيات نه و ددغسې نوي ځلمي لاس لاندې دغه راز مهم اشخاص په اطاعت او انقياد مامورول او دهغوی له خوا په خوښۍ ددغه امرمنل دنفس د تزکيې ډېرښه ثبوت دی.

دغه راز اخلاقي تربيه او دفداکارۍ روحيه په خپلو پيروانو کښي پيدا کول چه دډېر لوی اجتماعي مقام او منزلت خاوندان او داوليت او الويت حق لرونکي دېته حاضر شي چه داسلام دخدمت دپاره دموالیو له جملې څخه له ځانه ډېر کشر سړی په مشرتوب ومني او د هيڅ راز کسرشان احساس ونکړي که خارق العاده کارنه وي نو څه به وي؟

درسول الله (ص) دغه امر په داسي وخت کښي صادر شو چه دی دمريضی په بستر کښي و او دلښکر له خوځيدو نه دمخه بې ظاهري ژوند خاتمه ومونده او حضرت ابوبکر (رض) داسلام لومړی خليفه شو.

په دغه حال کښي چه ابوبکر صديق(رض) په انتظامی چارو ډېر زيات مصروف وا و ډېر مشکلات بې په مخکښي و بيا بې هم درسول الله (ص) په امر کښي تاخير جائز و نه ګاڼه او سمد لاسه بې داسامة دحرکت دپاره لازم ترتيبات ونيول. خليفه په خپله له دغه لښکر سره دمشايعت او وداع دپاره له مدينی نه دباندې پياده روان ؤ. او اسامة په آس سپور و ، هغه که هرڅومره اصرار وکړچه يا به خليفه هم په آس سپرېږي يابه دی له آس څخه کوزېږي خو حضرت ابوبکرصديق(رض) قسم ياد کړ چه نه به ته کوزېږې اونه به زه سپرېږم.

په دغه وخت کښي حضرت ابوبکر (رض) د حضرت عمر (رض) مرستی او مشورې ته ډېر احتياج درلود او هغه بې داسامة له اجازې څخه نشو پاتې کيدی ځکه بې اسامة ته وويل: که ماسره دا مرسته وکړې چه عمر راته پرېږدې څومره به ښه وي. هماغه وچه حضرت عمر (رض) د اسامة په اجازه له خليفه سره پاتې شو اونور لښکر غزا ته روان شو. دا و درسول الله (ص) هغه کامل روحي نفوذ چه دخپلو اصحابو د روح په اعماقو کښي بې درلود او په ډېرقوي ايمان بې دهغوی نفسي اوشعوري حالت بيخی بدل کړی و.

درسول الله (ص) نه وروسته هم دغه عالي اخلاق تريوه وخته په اصحابو کښي باقي ؤ او اسلام په همدغه قوي روحيه مخ په ترقي روان ومګر دحضرت عمر (رض) د خلافت له ختميدو وروسته اسلامي تربيه او اسلامی اخلاق مخ په ټيټيدو شوه او ښکاره تغيرپکښي راغی.

## حضرت ابوبکر صديق (رض):

داسلام لومړی خليفه چه درسول الله (ص) له وفاته وروسته دخلافت لوړمقام ته ورسيده ، دغه لوړاو عالي مقام دده په وضع اوحال کښي هيڅ تغير پيښ نه شو کړی او څنګه چه و هغسي و ، خلافت او رياست په هرسړي کښي ارو مرو يو څه تغير راولي ، هر څوک چه اولو الامرشي اوخلک بې په اطاعت مکلف شي دجاه وجلال اوشان وشوکت له اغيزې لاندې راځي اوبايد چه راشي مګر درسول الله (ص) ځينې اصحاب له دغه تاثير لاندې رانغله او له ډېر اقتدارسره بياهم متواضع متقيان او دخدای دمخلوق رښتوني خدمتګاران و نه باداران.

خلافت دا ونکړی شو چه حتی دابوبکر صديق(رض) داستوګنې په کور کښي څه جزئي تغير راولې په خپله دی خو لا پرېږده هماغه وړوکی کورچه له مدينې نه دباندې ده درلود له خلافت نه وروسته هم دده د استوګنې ځای و او څه فرق پکښي رانغی لکه چه پخوا به کله پياده اوکله په خپل شخصي اس مدينې ته راته ، پس له خلافته بې هم تګ او راتګ کله پخپل هماغه اس و او کله به پلی روان و يعنې د بيت المال په اس نه سپريده.

ده غوښتل چه په خلافت کښي هم له بيت المال نه څه وانخلي او دخپل لاس په ګټه ژوند وکړي يعنی دخلافت دچارو د اجراکولو سره خپل کار وکسب هم وکړي او بې معاشه دغه درنه وظيفه په غاړه واخلي مګر مسلمانانو اجازه ورنکړه او و بې ويل له دغه لوی اجتماعي خدمت سره بل شغل امکان نه لري ته بايد دځان اوخپل عيال د قوت په اندازه له بيت المال څخه معاش واخلې او هغه معاش هم خلکو دکفايت په قدر وټاکه خوکله چه خليفه وفات کيده نو امر بې وکړ څه چه ده له بيت المال څخه اخيستې دي دده له مال څخه دې بيت المال ته مسترد شي.

حضرت ابوبکر (رض) لکه چه له خلافت نه پخوا دضعیفانو دمرستې په لړ کښې دیوې ضعیفې کونډې مېږې ورته لوشلې له خلافته وروسته بې هم دغه کار دخدای دپاره کاوه.

## حضرت عمر (رض):

داسلام دوهم خلیفه چه دکسری اوقیصر دوه لوېې امپراطورۍ بې له اغیزې لاندې شوې او د مسلمانانو بیت المال دده په وخت کښې لـه حده زیات غني و بیاهم ده خپل نفس ددنیا لـه خوندونو او نعمتونو محروم کړی و او ژوند بې ډېر فقیرانه و یوازې دانه چه مادي عیش اولذت بې په ځان حرام کړی و بلکه معنوي اواحساسي لذتونه بې هم په نفس درولي و.

وایې چه یوه ورځ دغه ستر خلیفه چه دعدالت له هیبته بې د زورورو زړونه رپیدل د اوبومشک په شاکړی و چه خلکو ورته په حیرت او تعجب کتل، دده ځوی چه په مخه ورغی نو د انکار په ډول بې ورتـه وویل: داځه کوې؟ خلیفه ځواب ورکړ، نفس ته مې عجب او غرور پیداشوی غواړم چه ذلیل اوحقیر بې کړم.

همدغه خلیفه چه دحج دفریضې په اداکولو کښې بې له خپلو ملګرو سره شپاړس دیناره مصرف کړې و دتاسف پـه ډول بې وویل: بیت المال ته مو ډېر زیان ورساوه یوخلیفه چه دخپل مصرف دپاره د ورځې دوه درهمه لـه بیت المال څخه اخلي اوپه قوت لایموت قناعت کوي باید شپاړس دیناره مصرفول له حده تیری وګڼي.

دحضرت عمر(رض) دغه سختګیري یوازې په ځان باندې وه او خپلو عمالوته بې کافي معاشونه ورکول مثلا عماربن یاسر دکوفې والي ته بې په میاشت کښې شپږ سوه درهمه ورکول اود ورځې نیم پسه له څه اوړو سره همدارنګه عبدالله ابن مسعود ته بې یوسل درهمه او د ورځې دیوه پسه څلورمه برخه ورکوله، عثمان ابن حنیف تـه یوسل اوپنځوس درهمه اوپه ورځ کښې دپسه ربع.

حضرت عمر (رض) د اسلامی روحیې په بنا داسیاست ډېرښه عملي کاوه چه صالح اشخاص او دتقوی خاوندان بې که موالی هم و له هغو قریشونه ډېرښه ګڼل چه اسلامی پایه به بې ټیټه وه اوضعیفان ورته له زورورو نه ډېر محترم و.

په همدغه اساس بې عماربن یاسر چه دموالیو له جملې څخه ودکوفې والي کړی و.

وائي چه یوه ورځ دده په دروازه کښې ابوسفیان بن حرب، سهیل ابن عمر، حارث ابن هشام او دقریشو نور سرداران ولاړ و اوله دوی سره صهیب اوبلال هم چه دموالیوله جملې څخه و دخلیفه دلیدو په انتظار کښې شریک و، خلیفه اول خپل حضورته صهیب او بلال وغوښتل اونور هماغسې منتظرپاتی شو، دابوسفیان پـزه لـه ډېر قهره وپړسیده اوپـه ډېرتاثر بې وویل: داسې ورځ هم راورسیده چه مریان غوښتل کېږې او مونږ په دروازه کښې ولاړ پاتې کېږو.

دحضرت عمر (رض) دغـه کار تصادفي یاغیر ارادي نـه و هغـه پـدې ډېرښه پوهیده چه داکار دقریشو پـه سردارانو اوخصوصاً پـه ابوسفیان څومره درنـه روحي اونفسیاتي اغیزه لـري مګر اسلامي روحیه اودیني مقدسه غایـه پـه ده حاکمه وه او ځان ئې اخلاقاً او دیانتاً مجبور ګاڼه چه همدغسې وکړي.

دقرآن کریم په سورت قصص کښې دفرعون او هامان په مقابل کښې دضعیفانو اوناتوانوخلکو دقوي کولو او دهغوی دخوارولـو اوذلیلولـو بیـان: (وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ القصص آیت ۷ ) همدغـه اسلامي روحیه څرګندوي چه ترجمه ئې داده: غوښتل موچه دځمکې له ضعیفانو سره احسان وکړو او پیشوایان بې وګرزوو، دځمکې وارثان او صاحبان بې کړو، فرعون وهامان او ددوی لښکر وته دضعیفانو له لاسه هغه عذابونه وښیو چه دوی ترېنه حذر کاوه.

دادی دخدای هغه قانون چه قرآن بې بیانوي او د الهي سنت په حیث تاریخی سابقه لري.

حضرت عمر(رض) داسلام دغه اساسي هدف ډېرښه تشخیص کړی و او دخپلې خط مشې اصلي مرام بې باله.

یو وخت عمر ابن الخطاب په مکه کښې ولیدل چه دقریشو سرداران په ډوډۍ ناست او خدمتګاران ورته ولاړدي ځکه بې په قهر وویل: (مَالِقَومٍ یَستَاْ ثِرُونَ عَلیٰ خُدّامِهِم ) یعنی نه ښایي چه یو قوم ځان له خادمانو نه غوره وګڼي، بیا یې خدمتګاران په یوه دستر خوان له خپلو صاحبانو سره په ډوډۍ کښېنول او دغه امتیاز یې مردود وګاڼه.
دغه خلیفه چه په عسفان نومی ځای کښې یې دمکې عامل او په اوسنۍ اصطلاح والي (نافع ابن حارث ) ولید پوښتنه یې ترې وکړه چه دخپل قایمقام دې څوک پرېښود هغه وویل: ابن ابزي مې پرېښود. خلیفه بیا پوښتنه وکړه: ابن ابزي څوک دی؟ نافع وویل: زمونږ له موالیو څخه یو تن.
عمر (رض) وویل: مولی دې خپل خلیفه پرې ایښی دی؟ نافع ځواب ورکړ هغه دقرآن قاری او په فرایضو ښه پوه سړی دی.
حضرت عمر (رض) وویل: ایا زمونږ پیغمبر دا ندي ویلي: (اِنّ اللّهَ یَرفَعُ بِهذَا الکِتَابِ اَقوَاماً وَیَضَعُ بِهِ اٰخَرِینَ) یعنی پاک خدای ددې کتاب (قرآن) په وسیله قومونه لوړوي او نور راټیټوي. پس له هغه نافع پوه شو چه دحضرت عمر دغه پوښتنه د انکار دپاره نه وه د استفهام دپاره وه. او غوښتل یې چه د ابن ابزي په مزیت پوه شي. که داسې نه وای نو ده به ولې عماربن یاسر دکوفې والي کاوه او ولې به یې صهیب او بلال له ابوسفیان نه دمخه خپل حضور ته غوښتل. بلـه دا چه د حضرت عمر نه چا پوښتنه وکړه چه وروسته له تانه به څوک دخلافت دپاره مناسب وي او د شوری په غړو کښې درته کوم یو ډېر وړمعلومېږي.
ده وویل: (لَوکَانَ سَالِمٌ مَولیٰ اَبِی حُذَیفَة حَیاً لَوَلّیتُهُ ) که سالم دابی حذیفة مولی ژوندی وای مابه وړګڼلی و. دشوری غړي دغه کسان و: عثمان، علی، طلحه، زبیر، عبدالرحمن بن عوف، سعدبن ابی وقاص او عبدالله بن عمر یعنی دده خپل زوی چه د رایې حق یې ورکړي نه و مګر په شوری کښې یې شامل کړی و.
حضرت عمر په خپل خلافت کښې معاشونه او عطایا په دې اساس ورکول چه په اسلام کښې د چا سابقه زیاته ده او په څومره غزاګانو کښې له رسول الله (ص) سره ملګری و مګر دا قاعده یې د اسامة بن زید په حق کښې ماته کړه ځکه چه هغه ته یې څلور زره درهمه وټاکل او خپل ځوی عبدالله ابن عمر ته یې درې زره درهمه ټاکلي و. عبدالله داعتراض په ډول وویل: زه په ډېرو غزاګانو کښې شامل شوی یم چه اسامة پکښې ګډون نه درلود او سابقه مې له هغه نه زیاته ده مګر دهغه معاش ډېر او زما لږ دی. حضرت عمر وویل: هغه له تانه په رسول الله (ص) ډېر ګران و او پلار یې هم ستاله پلار نه رسول الله (ص) ته محبوب و.

## حضرت علی کرم الله وجهه:

د اسلام څلورم خلیفه په داسې وخت کښې دخلافت قبلولو ته مجبور شو چه اسلامي تربیه او اسلامي اخلاق مخ په ځوړ و او مسلمانان د ډېرو عظیمو فتوحاتو له برکته دډېرو شتو خاوندان شوي و.
ثروت او بډائي له ځان سره عیاشي او تن آسایي راوړي، په زړونو کښې دجاه وجلال مینه پیداکوي او غفلت زیاتوي. څوک چه په دنیا پورې زړه وتړي او دنفسي خواهشاتو پنډې شي په اخلاقو کښې یې بدلون راځي او روحاني تعلقات یې کمېږي.
دحضرت عمر(رض) له خلافته وروسته دحضرت عثمان(رض) په خلافت کښې مسلمانان که څه هم د هیوادونو په فتح کولو او د اسلام په خپرولو کښې کامیاب و مګر له دغو کامیابیو سره معنوي او اخلاقي انحطاط هم ملګری ؤ.
په مسلمانانو کښې داقتدار او شخصي ګټو مینه را ژوندۍ شوې وه حرص وهوس غځونې شروع کړې وې، امویانو دموروثي سلطنت خوبونه لیدل او ځانونه یې د سبا ورځې دپاره قوي کول.
دخلافت په باغ وبڼ کښې دحکم او مروان په شان بدبوټي پیدا شوي و، سیاسي رشوتونه رایج شوه او د ضمیرخرڅولو تجارت په مزه کښې و. حضرت علی ددغه بازارسړی نه و او د وخت ناوړه غوښتنې یې ردولې. ده په موقت ډول هم دیوې

وسيلې په حيث مسلک له سياست څخه نه قرباناوه او د اخلاقي انحراف په بيه بې سياسي کاميابي لويه ناکامي ګڼله.
دی په دې پوهيده چه ديني جذبه په خلکو کښې ضعيفه شويده او اکثر اشخاص دهغه چا ملګري کېږي چه ددوی ضميرونه په پيسو رانيسي يا بې اقلاً په وعدو خوشحالوي مګر ده داکارنه کاوه او سمه لاره بې نه پرېښوده هيڅاته بې بې شرعي استحقاقه څه نه ورکول او نه بې څوک په طمع کښې ساتل.
کله چه ده ته دده ورور عقيل په ډېر لوی اميدراغی چه له بيت المال نه دومره څه ورکړي چه نيستي بې غوڅه شي نوده امام حسن ته وويل: زمابرخه چه له بيت المال څخه راووته له خپل تره سره بازار ته لاړشه يو جوړ نوي جامې اونوي پڼې ورته واخله، همدغه عقيل چه له ده نه خوابدی حضرت معاويه ته ورغی هغه له بيت المال څخه سل زره درهمه ورکړه.
د سياست تقاضاهمدغه وه چه ورور له وروره نه په دغه ډول بيل کړي مګر ديانت اومسلکي تقوی حضرت علي ته اجازه ورنکړه چه دبيت المال پيسې د سياسي مصلحت دپاره ولګوي.
حضرت علي به ويل: زه پوهېږم چه څه شی تاسو اصلاح کوي مګرنه غواړم چه دځان په فاسدولو تاسو اصلاح کړم.
دده په عقيده هغه څوک بريالی نه و چه ګناه پرې بريالی شي.
ده هغه غالب مغلوب ګاڼه چه په ناجايزه طريقه اووسيله بې غلبه حاصلوله.
يومصلح اخلاقي لارښود دا نه خوښوي چه دوخت په تقاضا خپله لاره بدله کړي او د سياسي مصلحت دپاره مسلکي اصول قربان کړي.
علي کرم الله وجهه غوښتل چه درسول الله (ص) او دوو لومړيو خليفه ګانو په لاره مستقيم لاړشي او هېڅ راز انحراف ونکړي مګر مسلمانانو په عمومي صورت هغه اخلاق اوديني احساسات بايللي وچه دهغوی په زمانه کښې بې لرل.
همدغه اخلاقی انحطاط اومعنوي سقوط ددې باعث شوچه په اسلام کښې رخنې اوتفرقې پيداشي اوفتنة الکبری ته لاره خلاصه شي دهمدغه فاحش تغير په وجه اسلامي زعامت خپل عظمت بايلود اونتيجه بې داشوه چه بالاخره يزيد او يزيديان دقدرت خاوندان شوه او اداري دستګاه بيخي فاسده شوه.
درسول الله (ص) له رحلت څخه پنځوس کاله وروسته دمسلمانانو داحال وچه دکوفې والي زياد ابن ابيه به مسلمانان مجبورول چه په مجامعو کښې دمنبر په سرعلي او اهل بيتوته کنځلې وکړي اوفحش ووايي که چابه لدې خبرې انکار کاوه نو په ډېرې بې رحمۍ به وژل کيده حال داچه قرآن په ډېرصراحت خپل پيروان له کنځلونه ډېرسخت منع کړيدی که څه هم مقابل لوری کافران اومشرکان وي: (وَلاَ تَسُبُّواْ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللّهِ ......الانعام آيت ۱۰۸).
زياد ابن ابيه دکوفې والي هغه سړی وچه مور بې (سمية) له ابوسفيان سره بې نکاح شپې تيرولې اورسمي مېړه بې بل څوک و، همدغه وجه وه چه ده ته ابن ابيه ويل کيده او معلوم پلار بې نه درلوده.
ده د دې دپاره چه نسب بې له معاويه سره ګډ شي او دهغه ورور وبلل شي په رسمي محفل کښې بې داخبره اعلان کړه چه دی د ابوسفيان ځوی دی او دخپلې مورله رسمي اوقانوني مېړه څخه ندی پيداشوی او داد اخلاقي انحطاط ډېربرجسته مثال دی.
درسول الله (ص) ډېرګران لمسی امام حسين(رض) دزياد ابن ابيه په امر له اويا تنو ډېرو نژدوخپلوانو، ښځو اوماشومانو سره په کربلا کښې دعمربن سعد بن ابی وقاص په لاس ووژل شوه داحقيقت ډېرښه څرګندوي چه په مسلمانانو کښې څومره لوی بدلون راغلی و.
دهمدغه عمر پلار سعدبن ابی وقاص هغه سړی وچه داحد په غزا کښې بې دخپل سر په سودا په ډېرې ايمانداری اوفداکاری له رسول الله (ص) څخه په ډېرسخت خطرناک حالت کښې تراخره په ډېرو زياتو غشو ويشتلو بې مثاله مدافعه وکړه او په همدغه وجه په ډېرو خاصو اصحابو (عشره مبشره ) کښې حساب شو.
داسلام په تاريخ کښې که څه هم دېزيديانو توره منحوسه دوره د اخلاقی مفاسدو اوناوړه اعمالو يو طغياني حالت و چه قهقرائي رجعت ورته ويلی شومګر دغو ټولو شوموحوادثوونکړی شوه چه داسلام عميق معنوي تاثيرات بيخي له مينځه يوسي اوداسلامي اخلاقو جرړې وباسي.

دغه معنوي اوظاهري خزان د اسلام باغ وبڼ سپيره ډاګ کړ او ښاروي بې پکښې وښرول مګرله خاورولاندې نيلي رينبې بې محوه نشوې کړی او په دغه ګلشن کښې کله ناکله ډېرښه بوټي وټوکيدل چه په دغه جمله کښې عمربن عبدالعزيز دحضرت عمربن خطاب ډېرښه پيروګڼلی شو.

## عمر ابن عبدالعزيز:

دخلافت دعهد وروستی ځلانده ستوری همدغه مبارک شخص دی چه اسلامی روحيه ئې په ډېرښه شان تمثيل کړه.
کله چه ده دخلافت په نامه دسلطنت واکې په لاس کښې ونيولې منبرته وخوت اوداسې ئې وويل:
((...... زه په يوه داسې کارکښې له ازمينبت سره مخامخ شوم چه مانه غوښته اوتاسوهم دانتخاب له لارې داکارماته نه دی راسپارلی دغه دی ماخپل ځان خلع کړاو تاسو اختيار لرئ چه هرڅوک انتخابوئ.... )) وروسته له دغې خطابې له هرې خوا دا اوازونه اوچت شوه چه مونږ ته انتخاب کړې تاغواړو او په تاوياړو اې اميرالمومنينه !
وروسته تردې خليفه بياخلک مخاطب کړه او وئې ويل: په دې پوه شئ چه مخلوق ته داسې اطاعت نه ښايي چه هغه دخالق په معصيت کښې وي. که څوک دخدای اطاعت کوي اطاعت ئې واجب دی اوکه له خدايه غاړه غړوي په چاباندې داطاعت حق نه لري. تاسوتر هغه حده زما اطاعت وکړئ ترڅو چه زه دخدای فرمان وړم که هروخت مې دخدای له امر سر وغړاوه نوبيازما امرته غاړه مه ږدئ.
پس لدې نه عمرابن عبدالعزيز سمدلاسه دتېرو مظالموپه ردولو کښې اول له ځانه شروع وکړه کوم مالونه چه ده ته داسلافو اقتدارپه ميراث پرېښی وهغه ئې دمسلمانانوبيت المال ته مسترد کړه حتی چه هغه قيمتي ګوته ئې چه په ګوته وه او وليد ورکړې وه هغه ئې هم له لاسه ور وايستله، کومې ځمکې چه يو ځای اوبل ځای ده ته ورکړه شوې وې ټولې ئې پرېښودې يوازې يوکاريزئې چه په سويدا کښې په خپلو پيسو ويستلی وځانته وساته چه په کال کښې ئې يوسل اوپنځوس ديناره کله لږکم کله لږ زيات حاصل ورکاوه، اوده خپله ګذاره پرې کوله يعنې له بيت المال څخه ئې هيڅ نه اخيستل اوټول عايدات ئې همدغه و.
يوه ورځ چاورته وويل چه عمرابن الخطاب خوله بيت المال څخه دورځې دوه درهمه اخيستل ته ئې هم بايد واخلې عمرابن عبدالعزيز وويل هغه په خپله څه نلرل ځکه ئې اخيستل زه خودومره څه لرم چه ګذاره مې پرې وشي.
دده ښځه دعبدالملک بن مروان لوروه اوپلارئې څه قيمتي جواهر دتحفې په ډول ورکړی و عمر فاطمې ته وويل: ته اختيارلرې چه په دې دووخبروکښې هره يوه منې اوهغه داچه يا دغه جواهرات بيت المال ته وسپاره ياماته اجازه راکړه چه له تانه بيل واوسېږم ځکه چه زه اودغه جواهرپه يوه کوټه کښې نشوياتې کيدی.
فاطمې وويل: يا اميرالمومنينه ! ماته له دغو جواهرو اوددې څوچنده جواهرونه ته ښه ئې هماغه وچه جواهر هم بيت المال ته وسپارل شوه، په دغه ډول هغه ټول مالونه چه په غير عادلانه توګه له يوه اوبل سره جمع شوي و اودبيت المال حق و بيرته بيت المال ته مسترد شوه اواسلامي عدالت بياقايم شو.
کله چه عمرابن عبدالعزيز وفات شواو يزيد ابن عبدالملک اميرالمومنين شونو خپلې خورفاطمې ته ئې وويل: ته کولی شې چه خپل جواهر له بيت المال نه بيرته واخلې، هغې وويل: مادعمر په ژوند په خپله خوښه بيت المال ته سپارلي دي دهغه له مرګه ئې وروسته هم بيرته نه اخلم. هماغه وچه يزيد هغه جواهرپه خپل اهل وعيال وويشل اوله بيت المال نه بيا شخصي ملکيت اوعين المال ته لاړل.
داؤ دهغه لوړواسلامي اخلاقو ځينې ممثلين چه حضرت محمد صلی الله عليه وسلم دخپل سيرت اوعمل په وسيله په خپلو پيروانو کښې پيدا کړي ؤ.
هغه محمد (ص) چه مسلمانانو ته له ځانه او له مورو پلاره ډېر ګران و اوايمان بې پرې راوړی وپه ورځنې ژوند کښې ځانته په کوم شخصی امتيازنه وقايل اوله نورونه ئې څه فرق نه درلوده. همدغه عملي تعليم اوتربيت وچه اغيزه ئې دده

په اصحابو او دهغوی په وسيله په تابعينو او تبع تابعينو کښې ثم فثم دسکې دضرب په شان باقي پاتې شوه او انفوسو کښې ئې داسې لوی معنوي بدلون راووست چه د دايمي معجزې حيثيت او ماهيت لري.
دا اغيزه کله لږ او کله ډېره د اسلام په نخبه اشخاصو کښې د کامل انسانيت مظهر بللی شو چه ځينې نور مثالونه ئې دادي:

## ابوعبيده بن جراح:

د رسول الله(ص) په اصحابو کښې ابوعبيده ډېر لوړ مقام او منزلت درلود، دی هغه وخت د اسلام منونکی او د پيغمبر (ص) ملګری شو چه د مسلمانانو شمير لا څلويښتو تنو ته نه و رسيدلی او د اسلامي سابقې په لحاظ له حضرت عمر نه دمخه دی.
رسول الله (ص) دی په ډېرو خاصو اصحابو (عشره مبشره) کښې شميرلی و او د امين الامة لقب ئې ورکړي ؤ.
دغه جليل القدره صحابی د حضرت ابوبکر صديق په خلافت کښې په شام کښې د اسلامي لښکر وعمومي قوماندان وچه حضرت ابوبکر(رض) د ده په ځای خالدبن وليد مقرر کړ او ده ته ئې وليکل زه په دې ښه پوه يم چه ته په ديني لحاظ له خالد څخه بهتر او افضل يې مګر په جنګ کښې هغه خاص مهارت او زيرکي لري ځکه مې هغه په تا باندې امير کړ ته دهغه اطاعت کوه او له امرنه ئې سرمه غړوه.
ابوعبيده چه دنبوي اخلاقو په پيروی خپل نفسي خواهشات محوه کړي ؤ او بې د اسلام له اعتلا نه يې بل مقصد نه درلوده په ډېرې خوښی ئې دغه امر ومانه او د خالد لاس لاندې د خدای د پاره جنګيده، حسد او رقابت په ده باندې څه بری ونه موند يعني دی غالب او نفس وشيطان مغلوب و، همدغه حقيقي مجاهد چه د حضرت عمر په خلافت کښې د لشکر د قايد په حيث په عمواس کښې ؤ او هلته ډېره سخته وبا ولګيده او د مرګ خطر په هران کښې موجود و نو حضرت عمر په امين الامة (ابوعبيده ) وويريده ځکه يې يو خط ورو ليږه چه مضمون ئې داؤ:
((زه تاته ضرورت لرم او غواړم څه خبرې درسره وکړم ته د خط له رسيدو سره سم راروان شه او ماته ځان راورسوه ) ).
ابوعبيده چه خط ولوست پوه شو چه خليفه دی د څه د پاره ورغوښتی دی ځکه ئې په جواب کښې خليفه ته وليکل: ((زه ستاسو په ضرورت پوه شوم زه د اسلامی لښکر يوتن يم او ځان را باندې له هغوی نه ګران نه دی زه ډېر خوښ يم چه د وی سره د خدای امر او قضاته منتظر اوسم، اميددی چه اميرالمومنين ما معاف کړی او لښکر سره د پاتې کيدو اجازه راکړي ) ) ښائي چه ډېر عسکري قوماندانان د محاربې په ميدان کښې ثابت قدم پاتې شوي وي مګر د ابوعبيده دغه ثبات او په دغسې حال کښې د خليفه د امرله تعميل نه معذرت غوښتل ډېر قوي ايمان او قضاوقدر ته کامل تسليم غواړي. کيدی شي چه ډېر توريالي اشخاص هم چه له ويستلو تورو څخه نه ويرېږي. له وبا څخه وويرېږي او د دولت دمشر دغه راز له لورينې ډک امرپه ډېره بېړه ومني او شکرونه ئې اداکړي.

## خالد بن وليد:

د اسلام دغه مشهور فاتح چه هيڅکله ئې شکست نه وخوړلی او د جنګ په چارو کښې د عزم وتدبير او ډېر مهارت خاوندو په شام کښې د اسلامي لښکر وقوماندان و چه دوهم خليفه حضرت عمر(رض) دی عزل کړ او په عوض ئې ابوعبيده بن جراح دلښکرو مشرو ټاکه نوبيا خالد ديوه سپاهي په حيث د ابوعبيده له قيادت لاندې د دين د اعتلاد پاره هماغسې جنګيده او د مقام ومنزلت دغه ظاهري تنزيل په ده باندې کوم څرګند اثر ونکړی شو.
د خالد هغه حيرانوونکي فتوحات چه د جنګ په ميدانونو کښې ئې په برخه شوي و او ده ته ئې ديوه لوی قهرمان حيثيت ورکړی ښائي چه د تاريخ په اوږدو کښې د نورو هم نصيب شوی وي مګر د نفسي اغيزو او د انساني غرايزو په مقابل کښې د غه اخلاقي بريالیتوب ډېر نادر او نايابه دی.

## امام ابو حنیفه:

داسلامی اخلاقو په لړکښې دصداقت اوراستکاری، دتقوی او پرهیزګاری یو ښه مثال ددغه مجتهد امام دتجارت قصه ده. ده دخپل معیشت دتامین دپاره دتجارت پیشه غوره کړې وه او حفص بن عبد الرحمن ورسره په تجارت کښې شریک و، یو ځل امام ابو حنیفه یو څه کالي دپلورلو دپاره خپل دغه شریک ته ولیږل او تاکیدئې وکړچه په دغو کالیو کښې دغه عیب موجود دی په هرچائې چه خرڅوې باید اول ورته دعیب یادونه وکړې او بیائې پرې وپلورې.
حفص هغه کالي خرڅ کړه مګر دعیب بیانول ئې هیر کړه، د کالیو قیمت په یوه روایت دیرش زره او په بل روایت پنځه دیرش زره درهمه په لاس ورغله چه هغه ئې امام ابو حنیفه ته وروړل نو امام پوښتنه وکړه چه خریدار دې له عیبه خبرکړ حفص وویل نه هېرمې شوه، امام صاحب روپۍ وانخستې او حفص ته ئې وویل چه خریدار پیدا کړه هغه هرڅه کوښښ وکړ خریدار پیدا نشو په همدغه وجه امام له خپل شریک سره معامله قطع کړه او هغه پیسې ئې له خپل نور مال سره ګډې نکړې دخدای په لار کښې ئې صدقه کړې.

## یونس ابن عبید:

داسړی هم تاجر و او دکان ئې درلود له ده سره دوه ډوله چینې وې چه یو ډول ئې څلورسوه درهمه ارزښت درلود او بل ډول دوه سوه درهمه.
کله چه یونس دلمانځه دپاره مسجد ته ولاړ او وراره ئې په دکان کښې ناست و، یو اعرابي راغی د دوه سوو روپو چینه ئې په څلورسوه واخیسته اولاړه مګرپه لاره کښې یونس په مخه ورغی او پوښتنه ئې ترې وکړه چه چینه دې په څو واخیسته اعرابي وویل په څلورسوه، یونس ورته وویل ددې چینې قیمت دوه سوه دی راشه چه په دکان کښې دوه سوه روپۍ بیرته درکړم. اعرابي وویل داچینه زمونږ په ښار کښې په پنځه سوه خرڅېږي زه پرې راضي یم یونس وویل که ته راضي یې زه راضي نه یم له ټاکلي قیمت نه زیات څه واخلم هماغه و چه اعرابي ئې بیرته راووست دوه سوه روپۍ ئې بیرته ورکړې او خپل وراره ئې ډېر وراټه چه دغه راز معامله بیا تکرار نشي.

## ابو بلال:

داسلامي اخلاقو په ممثلینو کښې ابو بلال هم دیادوني وړدی. دی په بصره کښې دخوارجو د طرفدارۍ په تورله څو تنو خوارجو سره بندي شو، بندیوان ددغه زاهد اوعابد بندي معتقد شو او دقرآن تلاوت ئې ډېرخوند ورکاوه ځکه ئې اجازه ورکړه چه دشپې خپل کورته ځي او د ورځې راځي اوکله کله به ئې د ورځې هم رخصت ورکاوه، یوه ورځ چه ابو بلال له بندیخانې نه بهر وچاورته وویل چه عبید الله بن زیاد ستاسو څو تنو بندیانو د وژلو امر صادر کړی چه سبا ته به عملي کېږي. ابو بلال چه دا واوریدل نو په ډېره بېړه ئې ځان بندیخانې ته ورساوه چه دده د نشوالي په وجه بندیوان دحاکم له قهر وغضب لاندې رانشي، ابو بلال چه دبندیوان داحسان په خاطر ځان د مرګ په خوله کښې ورکړ سباته دده ځینې ملګري ووژل شوه او دی تقدیراً معاف کړی شو اوله بندیخانې نه ژوندی راووت مګر کوم مظالم چه ده لیدل تحمل ئې ده ته ډېر ګران و او په همدغه وجه له څلویښتو ملګرو سره له بصرې نه بیدیاته لاړ او دا تعهد ئې په خپلو مینځو کښې وکړچه دظلم او تیري مخه به نیسی، عدل او صلاح ته به خلک رابولي، نه به په چا تعرض کوي نه به دچا مال لوټي له فساد نه به ځانونه ژغوري. دقتل اقدام به نه کوي مګر که چادوی وژل نومدافعه به کوي. ابن زیاد چه خبر شونو اسلم بن

زرعة ئې له دوه زره تنو سره واستاوه چه ابوبلال له خپلو ملګرو سره راولي. اسلم په اسک کښې له ابوبلال سره مخامخ شو او ورته ئې وويل راځئ له مونږ سره لاړ شئ او د ابن زياد اطاعت ته غاړه کېږدئ. ابوبلال وويل مونږ ديوه فاسق او ظالم اطاعت نه منو اوله تاسو سره نه ځو. هماغه وچه جنګ د اسلم دلښکر له خوا شروع شو او ابوبلال دفاع کوله. دخدای قدرت وچه څلويښتو تنو دوه زره تنو ته ماتې ورکړه او ابن زياد په داسې حال کښې چه اسلم ابن زرعة ئې ډېر زيات وراټه عباد بن احضرئي له څلور زره لښکر سره په ابوبلال پسې واستاوه له دې لښکر سره هم دابوبلال جنګ په همدغه ډول شروع شو يعنې لومړی تعرض دعباد لښکر له خوا و او ابوبلال دفاعي جنګ شروع کړ. دغه سخت جنګ ډېر دوام وکړ او ابوبلال متوجه شو چه دمازديګر لمونځ قضا کېږي ځکه ئې پيشنهادوکړ چه دلمانځه اداکولو دپاره جنګ متوقف کړو او پس له لمانځه بيا پيل کوو. عباد هم داخبره ومنله او دواړه جانبه په لمانځه مشغول شوه مګر عباد په لمانځه کښې يا ډېره چالاکي وکړه ياد اچه لمونځ ئې قطع کړ او جنګ ئې په داسې حال کښې شروع کړ چه ابوبلال او ملګري ئې په لمانځه ولاړو خو دجنګ دپاره ئې لمونځ پرېښنبود او ادامه ئې ورکړه ځکه څوک په قيام، څوک په رکوع او څوک په سجده شهيدان شوه او په دغه ډول څلورزه لښکر په څلويښتو تنوبريالی شو.

دا و داسلامي اخلاقو مظاهر چه دنمونې اومثال په ډول په مختلفو ساحو کښې وښودل شوه او داڅرګنده شوه چه اسلام دسياست او اداري په ډګر کښې لکه ابوبکر اوعمر اودجنګ په ډګر کښې لکه ابوعبيده او خالد ممتاز شخصيتونه جوړکړه، په تجارت اومالي مسايلو کښې ئې خپلوپيروانوته دصداقت او ايمانداری درس ورکړ او دحق په مجادله اومبارزه کښې ئې علي اوحسين ابراهيمي قرباني ته تيار کړه او دابوبلال دکار نامو په شان ډېرې حيرانوونکې کارنامې ئې تاريخ ته وسپارلې.

دصدراسلام نيکان او صالحان به پرېږدو ګنهګاران به ئې وګورو چه څنګه خلک و او اسلامي تربيې پرې څه اثرکړی و؟ په اصحابو اولومړنيو مسلمانانو کښې هم ځينې کسان دنفسي خواهشاتو په تقاضا دګناه مرتکب شويدي مګر خپله پټه ګناه ئې دخپل ضمير اووجدان په حکم ښکاره کړيده او هغه جزائې دځان دپاره غوښتې ده چه اسلام ورته ټاکلې وه.

په دغه جمله کښې دماعز ابن مالک قصه ډېره مشهوره ده. بريده روايت کوي چه ماعز ابن مالک رسول الله(ص)ته راغی اووئې ويل: دخدای رسوله ماله ګناه څخه پاک کړه هغه ورته وفرمايل: لاړ شه! له خدايه بخښنه وغواړه او تايب شه! ماعز ولاړ اولږه شيبه وروسته بيا راغی او هماغه څه ئې بياوويل: رسول الله(ص) هم خپله خبره تکرار کړه او دغه سوال وجواب ادامه پيداکړه ترڅو چه څلورم ځل ماعز بيا راغی او د (تطهير) مطالبه ئې وکړه. رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته داخل وفرمايل: له کومې ګناه نه دې پاک کړم ماعز وويل له زنا څخه پيغمبر پوښتنه وکړه چه مجنون خوبه نه وي، ورته وويل شوه نه مجنون نه دی بيائې تپوس وکړ آيا شراب ئې څکلي دي؟ يوتن ورنزدې شو او ويې ويل دشرابو بوی ورڅخه نه ځي. پس له هغه چه ماعز بيا په زنا اقرار وکړ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم د رجم حد پرې جارې کړاو دماعز ژوند ختم شو.

دوه يادرې ورځې وروسته رسول الله(ص) وفرمايل: ماعزته دمغفرت دعا وکړئ هغه داسې تايب شوچه که توبه ئې په ټول امت تقسيم شي ګنجايش لري، تردې وروسته يوه ښځه راغله هغې هم له رسول الله(ص) څخه دځان دطهارت غوښتنه وکړه پيغمبر ورته داستغفار اوتوبې توصيه وکړه، هغې وويل ماهم دماعز په شان ردوې زه له زنا څخه حامله شوې يم.

رسول الله(ص) ورته وويل: ترهغه وخته انتظار وکاږه چه د حمل وضع وشي او دغه ښځهٔ ئې دانصارويوه تن ته وسپارله چه د ولادت تروخته ئې وساتي، کله چه دښځې اولاد وشو هغه سړی راغی اودحمل د وضع اطلاع ئې ورکړه، رسول الله (ص) وفرمايل اوس ئې نه رجم کوو چه اولادئې صغير پاتې کېږي اوڅوک نشته چه شودې ورکړي. دانصارو له جملې څخه يوتن پاڅيده اودطفل درضاعت مصرف ئې په غاړه واخيست پس له هغه رسول الله(ص) د رجم حکم صادر کړ او دغې ښځې هم خپله ګناه پخپلو وينو ووينځله.

ماعز ابن مالک او دغې ښځې ته دخپلې ګناه دغه سزا معلومه وه چه رجم دی مګر سره له دې دواړو اصرار کاوه او پخپله ئې دغه جزا دځان دپاره غوښتله.
هغه باطني شعور چه اسلام او ایمان په دوی کښې پیدا کړی و په دوی حاکم او شرعي حدئې پرې جاري کاوه.
د اسلامي اخلاقو له بحثه وروسته د اسلامي تصوف بحث ضروري معلومېږي. اسلام، اخلاق او تصوف یو له بله معنوي تړون لري او یو بحث بل ته منتهی کېږي.
هغه کسان چه دین ته په مادي نظرګوري او د اقتصادي ایجاباتو اوضرورتونو مولودئې ګڼي وایي: دین په دوهمه مرحله کښې یعني کله چه له خپل مادي اصل او زماني ضرورت څخه لرې کېږي او تخذیري حالت پیدا کوي نو تصوف ترې جوړېږي او عرفاني شکل اختیاروي. ددوی په خیال تصوف د اسلام ددین منحرف او مخدر شوی شکل دی.
ځینې وائي تصوف د سامي دین یعنې اسلام په مقابل کښې د آریایانو دفاعي عکس العمل دی ځکه چه سامي نژاد په زور او فشار په دوی باندې اسلام تحمیل کړی او تصوف د همدغه فشار نتیجه ده.
یوه فرضیه داده چه دتصوف منشا نوي افلاطوني فلسفه ده چه د افلاطون د خیر محض، ښکلا او مثل له نظریې سره تعلق لري. ځینې کسان د تصوف ارتباط بودائیت او هندي روحانیت سره ښیي او ځینې ئې له زردشتیت سره تعلق ته ګوته نیسي او ځوک ئې له مسیحیت څخه ماخوذ ګڼي مګر اصلي اوصحیح خبره داده چه په اسلام کښې زهد او تقوی د تصوف لومړی مرحله ده چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سیرت کښې ئې د اعتدال په حالت کښې وینو د حضرت محمد (ص) زهد او ریاضت، روژې نیول، تهجد اوعبادت کول او له خوندورو خوراکونو څخه ځان ژغورل او نفس خوارول یو داسې حقیقت دی چه ځوک ترېنه انکار نشي کولی مګر دغه زهد او ریاضت په ده کښې داسې ضعف نه دی پیدا کړی چه دی ئې له جهادونو څخه عاجز کړی وي یائې دده مبارک وجود مقاومت کم کړی وي.
د رسول الله (ص) ځینو اصحابو هم زاهدانه ژوند درلود او ریاضت ئې کاوه چه اهل صفه پکښې ښکاره مقام لري.
همدغه زهد او ریاضت د اسلامي تصوف آغاز و چه وروسته ئې ځینې مراحل طی کړه او بالاخره پکښې نور څه هم راګډ شوه او دنورو فلسفو او مذاهبو رنګ ئې واخیست او مسیحی رهبانیت ته نژدې شو مګر بیا هم د اسلامي اصیل تصوف تشخیص او تمیز کیدی شي او دغه تصوف د عرفاني شخصیتونو او د ډېرو صالحو او مصلحو افرادو په جوړولو کښې موثر نقش لري او داسې رجال ئې وروزل چه د علم و معنی او د روحانیت سطحه ئې ډېره اوچته کړه او د اسلامي نړی له مفاخرو څخه وګڼل شوه.

# اسلامی تصوف

صوفیان په دین کښې درې درجې او مرتبې مني: اسلام، ایمان، احسان.
د لااله الا الله محمد رسول الله شهادت اداکول، لمونځ کول، روژه نیول، زکات ورکول او حج کول اسلام دی.
د مسلمانی دغه پنځه بنا ددین ظاهري شکل او صورت دی چه د اسلام ارکان بلل کېږي.
ایمان چه ددین روح ئې بولي په خدای، په ملایکو، په ټولو پیغمبرانو د قیامت په ورځ او د خدای له لوري د خیر او شر په قدر باور لرل دي.
احسان چه ددین حقیقت ئې ګڼي دا دی چه سړی په اقوالو او اعمالو او په خاطراتو کښې له خدای سره تعلق ولري او په هر څه او هر حال کښې ئې حاضر او ناظر وګڼي چه مراقبة الله هم ورته وایي.
په دغه باب کښې ددوی سند هغه حدیث شریف دی چه مسلم ئې له سیدنا عمر ابن لخطاب څخه روایت کوي او هغه دادی:

(بَينَمَانَحنُ جُلُوسٌ عِندَرَسُولِ اللهِ (ص) ذَاتَ يَومٍ اِذ طَلَعَ عَلَينَا رَجُلٌ شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ شَدِيدُ سُوَادِ الشَّعرِ لَايُرىٰ عَلَيهِ اَثَرُ السَفَرِ وَلَايَعرِفُهُ مِنَا اَحَدٌ حَتىٰ جَلَسَ اِلى النَّبِى (ص) فَاَسنَدَ رُكبَتَيهِ اِلىٰ رُكبَتَيهِ وَوَضَعَ كَفَّيهِ عَلىٰ فَخذَيهِ وَقَالَ: يَامُحَمَدُ ! اَخبِرنِى عَنِ الاسلام فَقَالَ رَسُولُ اللهِ الاِسلامُ اَن تَشهَدَ اَن لا اِلهَ الا الله وَاَنَّ مُحَمَدً رَّسُولُ الله وَتُقِيمَ الصَّلوٰةَ وَتُؤتِى اَلزَكَاةَ وَتَصُومَ رَمَضَانَ وَتُحِجَّ البَيتَ اِن اِستَطَعتَ اِلَيهِ سَبِيلاً.

قَالَ: صَدَقتَ ! فَعَجَبنَالَهُ يَسألُهُ وَيُصَدِّقُهُ.
قَالَ: فَاَخبِرنِى عَنِ الاِيمَان؟
قَالَ: اَن تُؤمِنَ بِالله وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَاليَومِ الاخِرِ وَتُ،مِنَ بِالقَدرِ خَيرِهِ وَشَرِهِ.
قَالَ: صَدَقتَ !
قَالَ: فَاَخبِرنِى عَنِ الاحسَان ؟
قَالَ: اَن تَعبُدَ اللهَ كَاَنكَ تَرَاهُ فَاِن لم تَكُن تَرَاهُ فَاِنَهُ يَرَاكَ.
قَالَ: فَاَخبِرنِى عَنِ السَاعَةِ؟
قَالَ: مَاالمَسئُولُ عَنهَابِاَعلَمَ مِنَ السَائِلِ.
قَالَ: اَخبِرنِى عَن اَمَارَاتِهَا ؟
قَالَ: اَن تَلِدَ الاَمَةُ رَبَّتَهَا وَاَن تَرَىٰ الحُفَاةَ العَرَاةَ العَالَةَ رُعَاةَ الشَاءِ يَتَطَاوَلُونَ فِى البُنيَانِ. ثُمَ انطَلَق... ! فَلَبِثتُ مَلِيّاًثُم
قَالَ يَاعُمَر ! اَتَدرِى مَنَ السَايِلُ؟
قُلتُ: اللهُ وَرَسُولُهُ اَعلَمُ.
قَالَ: اِنَهُ جِبرِيلَ اَتَاكُم يُعَلِّمُكُم دِينَكُم ! )
يعنې مونږ يوه ورځ درسول الله (ص) په حضور کښې ناست وچه يو سړی راغی جامې ئې ډېرې سپينې وې ويښتان ئې ډېر تور و دسفر ګرد او اثرېې نه ليدل کيده. زمونږ هيڅ يوه هغه نه پيژانده، پيغمبرته مخامخ کيناست زنګونه ئې دهغه په زنګنو ولګول خپل دواړه ورغوي ئې دهغه په ورنو کښيښودل او ويې ويل:
ای محمده ! له اسلامه مې خبره کړه، رسول الله (ص) ورته وويل اسلام دا دی چه داسې شاهدي اداکړې: اَشهَدُاَن لا اِلهَ اِلا اللهَ وَاَنَ مُحَمَدً رَسُولُ الله اومونځ اداکړې، زکات ورکړې د رمضان روژې ونيسې او دبيت الله حج وکړې که دلارې توان ئې ولرې.
هغه وويل: صدقت رښتيادي وويل.
مونږ تعجب وکړچه هم سوال کوي اوهم تصديق. بيائې وويل له ايمانه مې خبرکړه، رسول الله (ص) ورته وويل: ايمان دادی چه الله اودهغه په ملايکو، پيغمبرانو اودآخرت په ورځ ايمان راوړې اودقدر په خير وشرمومن اوسې.
هغه صدقت وويل.
بيائې وويل: له احسانه می خبرکړه.
رسول الله (ص) وفرمايل احسان دادی چه دخدای بندګي داسې وکړې لکه چه ته ئې وينې اوکه ئې نه وينې نو هغه خودې ويني. هغه وويل: له قيامته می خبرکړه.
پيغمبر وويل: پوښتل شوی له پوښتونکي څخه زيات عالم نه دی.
هغه وويل: دقيامت له نښو نښانو مې خبر کړه، رسول الله (ص) وويل: چه وينځه خپله باداره وزيږوي اوچه ووينی پښې ابل، بربنډ، اړ، ميږې او اوزې څروونکي کسان چه په کورونوجوړولو او لوړولوکښې زياتی کوي. وروسته تردې هغه لاړاوله يو څه درنګ نه وروسته رسول الله (ص) وويل: اې عمره ! وپوهيدې چه سايل څوک و؟
ماوويل: الله اورسول ئې ښه عالم دی. رسول الله (ص) وويل هغه جبريل و، تاسو ته راغی چه دين مو درزده کړي.

لـه دي حـديث څخـه صـوفيانو دامفهـوم واخيسـت چـه جبريـل عليـه السـلام دديـن تعليم د اسلام ايمـان او احسـان پـه بيانولو مونږ تـه راکړاو دغـه دري درجې يـا مرحلې ئي راپـه ګوتـه کړې ځوک چـه د احسـان مقـام تـه رسيدلی وي هغـه بـه ارومرو مومن او مسلمان هم وي. هغه چه مومن وي مسلم به هم وي مګر هرمسلم به مومن نه وي او نه هرمومن تـه د احسـان پـه درجه قايليدلی شو.

د اسلام او ايمان فرق په قرآن کريم کښې هم په واضح ډول وينو په سورت حجرات کښـې دا آيت: ( قَالَتِ الْأَعْرَابُ آمَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِن قُولُوا أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ الحجرات آيت ۱۴). وويـل دعربـو باديـه نشـينانو مونږ ايمان راوړی وو ايه ! (ورتـه ) تاسو ايمان نه دی راوړی مګر اسلام ته موغـاړه ايښـې ده مسـلمان شـوی ئـې خو ايمـان موزړونو تـه نه دی ننوتی.

ددين له دغو درو درجو نه صافيانو دري شيه استخراج کړه: شريعت، طريقت، حقيقت.

شريعت دظواهرو د اصلاح دپاره، طريقت دضمايرو د اصلاح دپاره او حقيقت د سرايرو د اصلاح دپاره.

لومړنی اصلاح پـه توبـه، پـه تقوی او پـه اسـتقامت لاس تـه راځـي، دوهمـه اصـلاح اخـلاص، صـدق او طمانيت غـواړي، د سرايرو او ارواحو د اصلاح دپاره مراقبه، مشاهده او معرفت په کار دی.

علم هم دصوفيانو په نظر کښې په دوو ډولو دی: يو د وراثت علم بل د د راست علم.

تدريسي علم هغه دی چه په زده کړه او تعليم له استاذ څخه يعني دځان غوندې انسان نه زده کېږي.

علم وراثت هغه دی چه بې ظاهري وسيلې او واسطې دخدای له لورې دعبادت او ذکر و فکر له لارې دچا په نصيب شي.

دوراثت علم صوفيانو له دې نبوي حديث څخه رايستلی دی:

(مَن عَمِلَ بِمَا عَلِمَ اَورَثَهُ اللهُ عِلمَ مَالم يَعلم) په دې حديث کښې ويل شويدی ځوک چه په علم باندې عمل وکړي نو خـدای ورته په ميراث دهغه څه علم ورکوي چه دی پرې علم نه لري. همدغه علـم تـه لدني علم هم وايي چه ذکريـی پـه دې آيت کښې شويدی: (وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا الکهف آيت ۶۵) دا علم دخضر عليه السلام په برخه وچه موسی عليـه السـلام تـه نه و ورکړشوی يعني موسی عليه السلام ته د شريعت ظاهري علم حاصل و او خضر دباطني علم لرونکی وچه قصه ئي پـه قرآن مجيد کښې راغلې ده.

صوفيان وايي: جبريل اول ځل شريعت راووړچه دټولو دپاره دی کله چه شريعت تقرر وموند نوبيـائي حقيقت دخواصـو دپاره نازل کړ چه ددين اعلی مرتبه ده. وايي چه د حقيقت تعليم اول ځل حضرت علی کرم الله وجهـه تـه وشو چه پيغمبرتـه ډېر نژدې و او له کوچنيتوب څخه ئي درسول الله (ص) تربيت حاصل کړی و.

درسول الله (ص) په اصحابو کښې يو شمير داسې کسان وچه اهل سرګڼل کيده لکه حذيفه يماني، سلمان فارسي او نور چه له حضرت علی (رض) سره ئې خاص ارتباط درلود. دتصوف مختلفې طريقې چه نن رايجې دي سلسـله ئـي بـالاخره حضرت علی کرم الله وجهه ته رسيږي او سرحقله دی ګڼل کېږي. اصـحاب صـفه يعنـی هغـه اصـحاب چـه لـه دنيا سره ئـي علايق قطع او ځانونه ئې زهد وعبادت تـه وقف کړي و، دتصوف دلومړی مدرسې بنيـاد دوی کيښـود چـه رسـول الله (ص) ئې پالنه کوله او ددوی دحال مراقب و، په دغه جمله کښې ځينې اهل سرهم شامل و.

داهل سرله جملې څخه حذيفة يماني زيات معروف و او پخپله له ده څخه روايت شويدی چه حضرت عمر ابن الخطاب ده ته وويل:

اې حذيفة ! ماته ووايه چه په ماکښې څه نفاق شته او که نه ؟ دی وايي ماورته وويـل: اې اميرالمومنينـه ! پـه تاکښـې څـه نفاق نشته.

بله داچه کوم وخت دا آيت دعبيدالله بن ابی لـه مرګـه وروسـته نـازل شـو: (وَلاَ تُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلاَ تَقُمْ عَلَىَ قَبْرِهِ إِنَّهُمْ كَفَرُواْ بِاللّهِ وَرَسُولِهِ وَمَاتُواْ وَهُمْ فَاسِقُونَ التوبـة آيت ۸۴ ) او پـه منافقـانو بانـدې دجنـازې دلمانځـه اداکول منع شوه، نو حضرت عمربه د ډېر احتياط له مخې دمجهول الحاله کسانو د جنازې له لمانځه څخه ځان ژغـوره او

ترخو به حذیفة په دغسې جنازه کښې حضورنه درلود ، دجنازې لمونځ به ئې نه کاوه، داځکه چه رسول الله (ص) اکثر منافقین هغه ته ښودلی و او په همدغه وجه په صاحب السِر ملقب و.
وایي چه حضرت علي به حذیفه له ځینو داسې خبرو څخه منع کاوه چه څوک به پرې نشو پوهیدلی او خلک به ئې په اشتباه کښې اچول.
حسن بصري چه په تصوف کښې دلومړی شخص په حیث پېژندل شویدی دغه زده کړه ئې په یوه روایت له حضرت علي څخه او په بل روایت له حذیفة یماني څخه حاصله کړیده وایي چه له حذیفة یماني څخه چاپوښتنه وکړه ته ځینې داسې خبرې کوې چه مونږ له نورو اصحابو څخه نه دي اوریدلي هغه وویل: زه رسول الله (ص) په دغسې خبرو خاص کړی یم نورو به له رسول الله (ص) څخه دخیرپوښتنه کوله او ما به د شر تپوس کاوه چه شرڅه شی دی، زه پوهیدم چه ترڅو شرونه پېژندل شي خیرنه پېژندل کېږي. تصوف او دحقیقت پوهه همدغه دسِرله خاوندانو سره په خاص ډول موجوده وه.

## شریعت او حقیقت یاتشریع او تحقیق:

دصوفیانو فهم او نظرپه قرآنی آیتونو او نبوي احادیثو کښې دوه جنبې ویني یوه شرعي جنبه بله دحقیقت جنبه چه یو ته تشریع او بلی ته تحقیق وایي. دوی وایي کله قرآن او سنت یوځای شریعت بیانوی او بل ځای حقیقت یا بالعکس.
کله قرآن تشریعی جنبه ښیي او سنت ئې تحقیقی جنبه توضیح کوي یا سنت تشریعی جنبه او قرآن تحقیقی جنبه بیانوي هغه څه چه دخدای له لوري نازل شویدي رسول الله (ص) ئې په توضیح او بیان ماموردی:
(وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ سورت نحل آیت۴۴) دقرآن داآیت: (اُدْخُلُواْ الْجَنَّةَ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ نحل آیت ۳۲) یعنې پخپل ښه عمل جنت ته ننوزئ تشریعی جنبه لري او په مقابل کښې ئې د رسول الله (ص) داقول: (لَن يَدخُلَ اَحَدُکُمُ الجَنّةَ بِعَمَلِه).
یعنې ستاسو هیڅ یو به پخپل عمل جنت ته داخل نشي تحقیقی جنبه څرګندوي چه دشریعت لاربښودنه هغه او دحقیقت داده.
همدارنګه داآیت: (وَمَا تَشَاؤُونَ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ الدهر آیت ۳۰) تحقیقي خوالري او داحدیث: (اِذَاهَمّ اَحَدُکُم بِحَسَنَةٍ کُتِبَت لَهُ حَسَنَةٌ) تشریع ده چه دغه ډول کله سنت قرآن مقید کاندي او کله قرآن سنت مقید کوي. انسان باید دوه سترګې ولري یوه د شریعت دپاره بله دحقیقت دپاره. دآیت او حدیث ترمینځ معارضه هم په دغه صورت له مینځه ځي او څه اشکال نه پاتې کېږي ځکه چه جهتونه مختلف دي.
دقرآن تحقیقی برخه چه مطالعه کړو نو دتصوف او طریقت اساسي ټکي لکه: مراقبه، محاسبه، توبه، انابت، ذکر، فکر، محبت، توکل، رضا، تسلیم، زهد، صبر، ایثار، صدق، مجاهده، دنفس او هوامخالفت، نفس لوامه، نفس اماره، نفس مطمئنه همدارنګه اولیاء صالحین، صدیقین او داسې نورټول په قرآن کښې موندلی شو، دا آیت: (وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا مزمل آیت ۸). دخدای د ذکر او له ماسوئ الله سره مقاطعه په ډېروضاحت اعلاموي او ویلی شو چه تصوف له قرآن څخه اخیستل شوی او ددین له یوه رکن (احسان) سره اصلي او اساسي رابطه لري مګر فهم ئې لکه چه محی الدین ابن عربي وائي د رجال الله کاردی. په رښتیا چه ددوی فهم او دنوروفهم ډېر تفاوت لري او شعور و ادراک ئې نورو غوندې نه وي.
عبدالقادر جیلانی دقادریه طریقې خاوند وایي ترخوسړی داعقیده پیدا نکړي چه په ژوند کښې ټول شیان بتان (اصنام) دي ترهغه په روحانیونو کښې نه حسابېږي.
سړی باید له خپلو اعضاؤ او له خپلو حواسو نه ګوښې شي او غیر له خدایه بل وجود ته قایل نشي. ځنګه چه داصناموا و موجوداتو مفهوم ددوی په نزد له نورونه فرق لري نورمفاهیم هم دصوفیانو په ذهن کښې بل شان دي.
دتوحید دکلمې مفهوم د اسلامي تصوف ددرې مرحلو په اعتبار په دې ډول تغیر موندلی دی.

۱- بې خدايه بل معبود نشته. ( په لومړۍ مرحله کښې )
۲- بې خدايه بل فاعل نشته. ( په دوهمه مرحله کښې )
۳- بې خدايه بل موجود نشته. ( په دريمه مرحله کښې )
کوم تفسير چه صوفيانو په کتاب الله اونبوي احاديثو کښې کړيدي دظاهري علم خاوندانو نه دي کړي او نه ئې ورته پام شويدی.
ابن عربي وائي کتاب الله اونبوي احاديث دخلکو دفهم مطابق يو ظاهري مفهوم لري چه لساني عرف پرې دلالت کوي اوله دينه علاوه نور مفاهيم دهغو فهمونو د پاره وي چه باطني پوهه ئې په برخه ده.
په يوه حديث کښې راغلي دي چه آيتونه ظاهر اوباطن، حد او مطلع لري تراوو بطنو يا اويا بطنو پورې. دايت ظاهر عبارت دی له هغه نافع علم څخه چه صالح اعمال پرې بنادي او معقوله جنبه لري.
باطن ئې الهي عرفان اومطلع ئې هغه معنی ده چه ظاهر اوباطن پکښې يو کېږي.
امام غزالي هم پخپل تفسير جواهر القران کښې دمشابهو آيتونو تفسير کښې باطني مفاهيم بيانوي اوبيا وايي: که ته په دغو معناگانو نه ئې پوهيدلی نو په قرآن کښې بې ظواهرو او پوستکونوره برخه نلرې لکه څاروی چه په درمنده کښې له بوسو پرته څه برخه نلري:
(فَانِ لَم تَفهَمِ المَعَانِی کَذَالِکَ فَلَیسَ لَکَ نَصِیبٌ مِنَ القُرآنِ الّا فِی قُشُورِهِ کَمَالَیسَ لِلبَهِیمَةِ نَصِیبُ مِنَ البُرِالّافِی قِشرِهِ )
څنګه چه غزالي په قرآن کريم کښې ظاهر اوباطن بوس اودانه بيلوي مولانا جلال الدين رومي داسلام لوی صوفي هم پخپل کتاب مثنوي کښې دغه مطلب داسې افاده کوي:
مـــــا ز قـــــرآن مغـــــز را برداشـــــتیم    پوســـــت را بـــــا دیگـــــران بگذاشـــــتیم

په شريعت باندې ډېرټينګ صوفيان په اسلامي فقه کښې په احسن اوافضل عمل کوي او له رخصت نه عزيمت دځان دپاره دپيروۍ وړګڼي يوازې دفرايضو اداکول اوله محارمو څخه اجتناب کافي نه ګڼي لايعني هم ترک کوي، په ډېر لږ څه قناعت لري دنفس و هوی متابعت پرېږدي له غفلته ځان ژغوري او زړه له ماسویٰ الله نه پاک ساتي.
وايي چه امام احمد بن حنبل له امام شافعي سره ناست وچه يو صوفی (شيبان الراعی ) راغی. احمد وويل غواړم له ده څخه څه پوښتني وکړم. امام شافعي ورته وويل داکارمه کوه، هغه وويل کوم ئې. امام احمد شيبان ته وويل که څوک څلور سجدې په څلورو رکعتونو کښې هيرې کړي څه پکښې وايې؟
شيبان وويل هغه زړه غافل دی او تاديب ئې واجب دی په دې خبره امام احمد بېخوده شواو لږ غوندي وروسته بيرته په حال شو ، دا ځل ئې وويل: که څوک څلويښت پسونه لري زکات ئې څومره دی؟ شيبان وويل: زمونږ په مذهب که ستاسو په مذهب؟ ستا په مذهب خو په څلويښتو پسونو يو پسه دی او زمونږ په مذهب بنده دخپل مالک په مقابل کښې دهيڅ شي مالک نه دی: (إِنَّ اللّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الجَنَّةَ التوبة آيت۱۱۱ ).
دصوفيانو اجتهاد د فقهاوله اجتهاد نه فرق لري دوی وايي داسلام مجتهدين (ابوحنيفه، شافعی، مالک، اوحنبل ) دي. د ايمان مجتهدين اشعريه يعنی دعلم کلام علما دي. داحسان مجتهدين صوفيان اومشايخ دي. که يو روژه دار (صايم ) د ورځې څه شی وخوري دشريعت په حکم ئې روژه ماتېږي. که غيبت وکړي نو دطريقت په لحاظ ئې روژه باطله شوه ، که ئې په زړه کښې ماسوی الله وګرزيده نو دحقيقت له مخې ئې روژه فاسد ه شوه.
يو فقيه په اسلامي احکامو کښې ظاهرته ګوري او په ظاهر عمل کوي ځکه وايي چه شرع ظاهرته ګوري، صوفي له ظاهرنه هغه خوا حقيقت په نظرکښې نيسي اوحال ته ګوري ځکه ئې صاحب حال بولي. وايی چه مشهور فقيه (ابويوسف ) به دکال په آخرکښې خپل مال، خپلې ښځې ته وبانښه چه يو کال ئې پوره نشي او په دغه شرعي حيله له زکات نه خلاص شي دا حکايت چا امام ابوحنيفه ته وکړ هغه وويل: دی دفقهې له علم څخه دغه استفاده کوي او له شرعي حکم نه پخپله پوهه ځان خلاصوی مګر دآخرت ضرر ئې ددنيا له ګټې څخه زيات دی.

په فقه کښې ځينې شيان شرعاً جايز دي مګر ديانتاًجايز نه دي، دفقيه اوصوفي فرق په دغسې مسايلو کښې ډير زيات دی. کله يوفقيه له شرعي فرض شوي زکات نه هم ځان خلاصوي او خپل ټول مال په شرعي حيلولـه ځان سره ساتي مګر يوصوفي يوازې د زکات ورکړه کافی نه ګڼي خپل ټول مال د خدای ګڼي او د خدای په لاره کښې ئې صرفوي يوازې قوت لايموت دضرورت پـه حکـم ځانتـه سـاتي او بس. د رسـول الله (ص) پـه اصـحابو کښـې هـم ځينـې ؤ چـه دلکونـو روپـو نقد ، جنس جايداد ونه ئې لرل او يوازې دزکات ورکړه ئې په ځان لازمه ګڼله مګر داسې کسان هم وچه په کورکښې به ئې ډېر لږ. څه يا هيڅ نه ساتل او ټول مال به ئې رسول الله (ص) ته راووړ چه پـه جهـاد کښـې ئې ولګوي يـائې دخدای دپاره صدقه کړي چه حضرت ابوبکرصديق به هم همدغسې کول. ابوذرغفاري پدې خبره ډېره مجادله وکړه چه يوازې د زکات په ورکړه سړی نه خلاصېږي بايد ټول مال صدقه کړي او ځانته ديوه کال له عادي اومعمولي خرڅ نه زيات څه ونه ساتي. د کنزيعنې دسرو اوسپينو ذخيره کول او زياته بدائي ناروا ګڼله او په دی آيت باندې ئې استناد کاوه.

(وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلاَ يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ التوبةآيت ۳۴) حضرت علی به هم ويل چه له څلوروزرودرهمونه لږ مال نفقه ده اوتردې زيات په کنزکښې حسابېږي. سلمان فارسي هم چه څه لـه بيت المال څخه اخيستل هغه ئې ټول دخدای په لارکښې صدقه کول او خپلـه نفقـه ئې پـه کـار او کسب ځانتـه پيدا کولـه. ده هم پـه کورکښې دکال له خرڅ نه زيات څه نه ساتل. صوفيان دزمان اومکان داختلاف په وجه پـه مختلفـو فرقـو ويشـل شـويدي اوهر راز خلک، هر راز خبرې او راز راز عقيدې پکښې پيدا شويدي.

ځينې په فرعي مسايلو کښې غلط شوي اوځينې په اصولو او اساساتو کښـې بې لارې شويدی چه علما او فقهائې پـه اسلام شکمن شوي اويونيم ئې لادکفر اوالحاد په توريه مرګ هم محکوم کړيدي. اشعري، ابن حزم، امام قلعی او ابـن الجوزي بغدادي دصوفيانو ډېرشديد مخالفين دي.

امام فخر رازي دصوفيانو ځينـو فرقوتـه بدوائی. مګراصحاب حقيقت دلوړې درجې اومرتبې خاوندان ګڼي اوفرق پکښې کوي.

ځينې نورلکه لوی مورخ ابن خلدون اوابو المظفر اسفرايني صوفيان عموماًښه ګڼي اوپه ډېر شه نظرورتـه ګوري ځينـو خبروته ئې ښه تاويلونه پيدا کوي او معذورئې بولي. امام غزالي داسلام لوی صوفي هم وائې ډېر صوفيان غوليدلي اولاره ئې ورکه کړيده ابو الحسن شاذلي هم ويلي دي زمونږ په طريقه کښې نجات مونـدونکي لږدي او هلاک شوي ډېر دي.

ابونصر سراج پخپل کتاب ( اللمع ) کښـې اول هغـه غلطی پـه ګوتـه کـوي چـه پـه فروعـاتو کښـې مينـځ تـه راغلي دي او ضلالت ورته نه ويل کېږي بيا هغه غلطی ښيی چه په اصولو کښې پيښې شويدي او د ضلالت موجب ګرزيدلي دي لکه:

۱- د عبوديت او حريت په معنیٰ کښې غلطيدل. ځينې لار ورکې صوفيان داسې پوه شويدي چه ترڅو دخدای او دبنده ترمينځ دعبوديت اوبندګی رابطه قايمه وي عبد اوبنده ورته ويل کېږي کله چه خدای ته وصل شي نو بيا حر او آزاد بلل کېږي او عبوديت له مينځه ځی.

۲- بله لار ورکې فرقه هغه ده چه ولايت له نبوت نه افضل ګڼي او هغه وليان چه دوی ئې مريدان اوپيروان دي لـه انبيـاو نـه خدای ته نژدې او وړاندی بولي.

۳- حلوليه فرقه پدې عقيده ده چه الله تعالی ځينې اجسام غوره کوي او حلول پکښې کوي په چاکښـی چه خدای حلول وکړي دهغه بشری جنبه له مينځه ځي او د ربوبيت شان او مقام ومنزلت پيدا کوي. دوی په دغه عقيده کښې دومره غلو کړيده چه چا پخپله ځان خدای ګڼل او انالحق ئې ويلی دی.

۴- ځينې دجبر په مسئله کښې هغه حد ته رسيدلي دي چه پخپل حرکت اوعمل کښـې ځانتـه پـه هيڅ اختيارنـه قـايلېږي اوله شرعي حدود نه خپل تجاوزغيراختياري ګڼي هيڅ راز ملامتي په ځان نه مني او هر څه کوي ځان ورتـه ګنهګارنـه ښکاري.

۵- اباحیه فرقه هم په دغه جمله کښې ده چه د شرع تغرئې ټول کړی او حرام ئې هم حلال گرزولی دی. دوی وائې خدای زمونږ عمل ته هیڅ احتیاج نلري نو ولې پخپل نفس مشقت راولو. دغه راز خطاګاني او غلطۍ په فروعاتو کښې دي که په اصولو کښې د اسلامي تصوف خپل شی نه دي او اسلامي تصوف ورته نشو ویلی.
مذهبونه په اصل کښې یو راز وي او په تطبیق کښې بل راز شي که ښه غور وکړو د فارسي مزدکی مذهب څخه اباحیت د نصرانیت څخه حلولیت، د هندي مذهب څخه د بشریت فنا ، د اسلامي تصوف په وروستیو مرحلو کښې اسلامي تصوف ته راننوتل او شیعي او سني تصوف هم خپلې نیلې او رینښې یو له بله سره وتړلې.
وائي بایزید بسطامي (ابویزید طیفوربن عیسی بسطامي چه پلار ئې زردشتي او نیکه ئې مجوسي و ) د اتحاد او حلول طرفدار د هندوانو د تصوف د عقیدې له تاثیر لاندې راغلې و. او حسین بن منصور حلاج د مسیحیت د حلول څخه متاثر شوی ؤ چه ده ( انا الحق ) ویل او دهغه ویناوه (لآ الهَ الا اَنَا فَاعبُدُونِی سُبحَانِی مَا اَعظَم شانی )ځینې صوفیان د شریعت ظواهرو ته په اصلي ارزښت قایل ندي او داسې فکر کوي چه شرع حق ته د رسیدو وسیله ده کله چه عارف حق او حقیقت ته ورسېږي نو بیا وسیلې ته څه حاجت نه پاتې کېږي.
مولانا جلال الدین بلخي هم د مثنوي په دریم دفتر کښې دغه مطلب ته په شاعرانه ډول اشاره کوي او دیوه عاشق داستان رانقلوی چه خپلې معشوقې ته رسېږي او په وصل کښې ورته د خپل عشق هغه سندرې وائي چه په هجران او فراق کښې ئې دهغې په مدح کښې ویلې او د خپل عجز او نیاز او اشتیاق اظهار ئې پکښې کړیدی. معشوقه مقابلتاً ورته داسې وایي:

گفت معشوق این اگر بهر من است — گاه وصل این عمر ضایع کردن است
من به پیشت حاضر و تو نامه خوان — نیست باری این نشان عاشقان

بل ځای هم دغه مفهوم داسې افاده کوي:

چونکه با معشوق گشتی همنشین — دفع کن دلالگان را بعد ازین
هرکه از طفلی گذشت و مرد شد — نامه و دلاله بروی سرد شد

شیخ محمود شبستري هم د شرع ظواهر لکه لمونځ، روژه، حج، د مبتدیانو د کمال وسیله ګڼي او داسې وایي:

ولی تا ناقصی زنهار زنهار — قوانین شریعت را نگهدار

د صوفیانو لغزشونه او انحرافات په اصولو کښې دي که په فروعو کښې ډېر سببونه لري چه یو مهم سبب ئې سیاست او سیاسي اغراض دي. د فقهاو ، متکلمینو او صوفیانو اختلاف چه اوږد تاریخ لري د سیاسی، اجتماعي او اقتصادي اوضاعو او حالاتو په تقاضا کله شدید شویدی او کله ضعیف شویدی.
تصوف په ابتدا یعني د حسن بصري په زمانه کښې ساده او بسیط وچه په لږو خلکو پورې محدود ګڼل کیده. وروسته ئې د آدابو او تعلیماتو دایره پراخه شوه او عمومیت ئې وموند.
دا حرکت په دوهم او دریم هجري قرن کښې د زهد په نامه پېژندل کیده. په څلورم او پنځم قرن کښې ئې د کشف و معرفت نوم وموند ، په شپږم او اووم قرن کښې ئې د وحدة الوجود او د ادیانو د اتحاد بنه پیدا کړه.

## دصوفیانو مقامونه او احوال:

په تصوف کښې اوه مقامه دي او په دې ډول دي:

توبه، ورع، زهد ، فقر، صبر، توکل، رضا ، په هرمقام کښې صوفي ته يونفسي حالت اوباطني تاثيرپيدا کېږي چه (حال ) ورته وايي او مجموعاً (احوال ) بلل کېږي.
احوال لس دي او هغه دادي: دمراقبې حال، دقرب حال، دمحبت حال، دخوف حال، د رجاحال، دشوق حال، دانس حال، داطمينان حال، دمشاهدې حال، ديقين حال.
دتصوف مقامونه اکتسابي دي او دسالک له اختيار او ارادې لاندې دي. مګر احوال د احساساتو او روحاني انفعالاتو او د نفسي مخصوصو کيفياتو له مقولې څخه دي چه دانسان په اختيار کښې ندي بلکه الهي مواهب دي چه دخدای له لوري دسالک زړه ته نازلېږي.
دتصوف طريقې مختلفې او متعددې دي چه ضيا الدين ئې په ( جامع الاصول ) کښې ۷۳ ښيي. جهاد يا مجاهده، شيخ نيول ، او دنفس معرفت ددغو ټولو طريقو مابه الاشتراک يعنی مشترک څيزونه دي.
مجاهده په لغت کښې دمحاربې په معنی ده او په شرع کښې دخدای له دښمنانو سره محاربه ده، مګر دصوفيانو په اصطلاح له نفس اماره سره محاربه، جهاد او مجاهده بلل کېږي. دخدای په لارکښې مجاهده خدای ته درسيدو ډېره مهمه لاره او وسيله ده.
الله تعالی وايي: (وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا العنکبوت آيت ۶۹ ) سبل دسبيل جمع ده دلارې او طريقې په معنی چه دطريقت قرآني اساس ئې بللی شو. له نفس سره مجاهده ډېرې لارې لري چه بايد شيخ او پير ئې دمريد دپاره انتخاب کړي لکه چه يو ډاکټر دهر مريض دپاره دهغه له حال سره مناسب بيله بيله دوا تعيينوي.
دتصوف له (۷۳) طريقو څخه ځينې طريقې چه زيات عموميت لري دادي.

## ۱ - قادريه:

داطريقه چه دجنيد دمکتب له اغېزې لاندې ده موسس ئې شيخ عبدالقادر جيلاني دی چه په ۴۷۰ هجري کښې زيږېدلی او په ۵۶۱ هجري کښې وفات شويدی.
په شرعي علومو کښې دتبحرخاوندو او په ۱۳ علوموکښې ئې لاس درلود.
فقهي فتوی به ئې د امام شافعي او امام احمد بن حنبل په مذهب ورکوله. ډېر کرامات ده ته منسوب دي ځينې ئې دادي:
دده له مورڅخه حکايت شوی چه دروژې په مياشت کښې به ده د ورځې دمورتی نه روده، يوه ورځ چه دخلکو دپاره مشتبه وه چه روژه به وي که بوزه نو دعبدالقادر دمورنه تپوس وشوهغې وويل تی نه روي، وروسته بيا خلکو ته معلومه شوه چه هغه ورځ د روژې ورځ وه.
په خپله له ده څخه حکايت شوی چه په افق کښې ئې ډېر عظيم نور وليد چه يوصورت پکښې ښکاره شو او ويل ئې:
اې عبدالقادره ! زه ستا رب يم او ټول محرمات مې تاته حلال کړه ده ورته وويل: ورک شه ! لعينه ! لدې وينا سره هغه نورپه تورتم بدل شو او هغه صورت لوګی وګرځيد چه بيائې ورته وويل:
ماپه دغه ډول اويا تنه دطريقو خاوندان ګمراه کړيدی مګر تانجات وموند. چاله ده نه پوښتنه وکړه ته څنګه پوه شوې چه دا شيطان دی؟
شيخ عبدالقادر وويل دحرامو په حلالولو.
وايي يوه ورځ په نظاميه مدرسه کښې ډېر فقها او علما راغونډ ؤ او شيخ عبدالقادر دقضاوقدرپه باب خبرې کولې يو مارله چت څخه راولوېد او ټول وتښتيدل يوازې دی په کوټه کښې پاتې شو او خپلې خبرې ئې کولې مار راغی دده له کميس لاندې ننووت او په جسد باندې ئې تېر شو له ګريوانه ئې راووت بيائې له غاړې نه تاوشو او دده په حال کښې هيڅ تغير رانغی ماربيرته ځمکې ته ښکته شواو مخامخ ورته په لکۍ ودريده څه غږترېنه پورته شو مګر څوک چه له کوټې نه دباندې و ، يوهم پوه نشو چه څه ئې وويل ، مار بيرته لاړ او خلک کوټې ته راننوتل. له ده څخه ئې دغږ په باب پوښتنه وکړه چه څه ئې ويل؟

شيخ په جواب کښې وويل مار راته وويل ماډېر اوليا په دغه شان ازمويلي دي مګر ستا ثبات مې په بل چاکښې ندی ليدلی. ما ورته وويل ته يو چينجی يې چه قضا او قدردی په حرکت راولي اوبس.
د شيخ عبدالقادر تصوف سني او طريقه ئي په اعتدال، د سنتو په متابعت، حب الخير، شفقت او تواضع بنا ده.
نهه څلويښت اولاده ئي درلوده چه يوولسو تنوئي دده لار ښودنه او طريقه د آسيا په غرب او مصر کښې خپره کړه.
ده له فقيرانو، صغيرانو، وينځو او غلامانو سره مينه اوناسته ولاړه درلوده مګر د دولت اعيانو او اکابروته هيڅکله نه پاڅيده اونه د وزير او د سلطان دروازې ته ورته.

## ۲- رفاعيه:

دا طريقه سيد احمد رفاعی ته منسوبه ده چه په **۵۸۰** هجری کښې وفات شويدی. بني رفاعه دعربو يوه قبيله ده چه رفاعی ورته منسوب دی. په ده کښې رحم او شفقت ډېر زيات و او په حيواناتو هم ډېر زهېروحتی چه کله به ئې د جامو په پيڅکه پيشو ويده وه او دلمانځه وخت به شو هغه پيڅکه به ئې له خپلو جامو نه غوڅه کړه او چه له لمانځه نه به بيرته راغی او پيشو به پاڅيدلې وه نو بيرته به ئې په جامو پورې وګنډله.

## ۳- احمديه:

احمد بدوي د مصر له لويو اولياؤ څخه دی چه په **۵۹۲** هجری کښې زيږيدلی دا احمديه طريقې مرشد دی.
دی هم لکه احمد رفاعي شافعي مذهب ؤ. دده طريقه هم په قرآن او سنت اتکا لري او د تعليماتو اساسي ټکي ئې دادي:
د نورو په مصيبتونو به نه خوشحاليږئ، ګونډيو ته به ضررنه رسوئ، دبديو مقابله په احسان سره کوئ. وږي به مړوئ، بربنډ به پټوئ. په يتيمانو اوضعيفانو به مهرباني کوئ.

## ۴- دسوقيه:

د ابراهيم دسوقی طريقه ده چه په **۷۷۲** هجری کښې د **۴۳** کالو په عمر وفات شويدی طريقه ئې په خالص سني تصوف بنا وه او په کتاب او سنت ئې تمسک درلود، شريعت ئې اصل او طريقت ئې فرع ګاڼه، دټولو خلکو مينه ئې د کمال ضروري شرط او د مريد راس المال شميره.

## ۵- اکبريه:

دا طريقه ځکه اکبريه بولي چه شيخ الا کبر (محی الدين ابن عربي) ته منسوبه ده، دا شيخ د وحدة الوجود د مدرسی زعيم (**۶۳۸** هجری) دی چه له وحدة الوجود څخه وحدة الاديان ته رسيدلی دی. ده ټول دينونه يودين ګاڼه چه هغه د محبت دين دی. د ده طريقه په څلورو صفتونو او خصلتونو بنا وه. چپوالی، ګوښه توب، لوږه، بيخوبی. په دې طريقه کښې پيرخپل مريد ته امرکوي چه له ټول صغيره او کبيره ګناهونو څخه توبه وباسي پس له هغه ئې بيا لاس په لاس ږدي او ورته وايي چه خپلې سترګې پټې کړه. اول درې ځله پيرلا اله الاالله وايي او مريدئی اوري بيائې مريد وايي او پيرورته غوږ نيسي.
وروسته بيا تبرکاً دا آيت شريف وايي: (انّ الذينَ يُبَايِعُونَکَ )تر (اَجراًعَظِيماً) پوري. پس له هغه مريد هره ورځ سل ځله استغفار، سل ځله لا اله الا الله دزړه په حضوراو د معنی په پوهه وايي، بيا سل ځله (الله) وريسې سل ځله دا درود وايي:
(اَللّهُمَ صَلِي وَسَلِم وَبَارِک عَلىٰ سَيدِنَا مُحَمَدِ النَبی الأمی اِمَامُ الهُدیٰ وَعَلیٰ الِه وَصَحبِهِ وَسَلِم عَدَدَ کُلِّ ذَرَةٍ الف الف کَرَةٍ)

## ٦- شاذليه:

ددي طريقي مؤسس او باني ابومديان و او ابولحسن علی شاذلي تونسي په خلکو کښې رايجه کړه ځکه ئې شاذليه بولي. علی شاذلی په ۵۹۳ هجري کښې زيږيدلی او په ۶۵۲ هجري کښې وفات شويدی.
دا طريقه د علم په طلب او ډېر ذکر بنا ده او مشقت او مجاهده پکښې ډېر بنت نلري.

## ۷- مولويه:

د مولانا جلال الدين رومي طريقه ده چه په ۶۷۲ هجري کښې په قونيه کښې مدفون شو. ده رقص او موسيقي د ذکر په طريقه کښې شامل کړه او عالمی شهرت ئې وموند.

## ۸- نقشبنديه:

شيخ بهاؤالدين محمد بن محمد بخاري چه په شاه نقشبند مشهور و ددي طريقي پيشوا دی. دی بخارا ته نژدې په يوه قريه کښې په ۷۱۸ هجري کښې زيږيدلی او په ۷۹۱ هجري کښې وفات شويدی. نقشبنديه طريقه هم لکه شاذليه سهله او اسانه طريقه ده چه په مريد باندې ډېرې سختۍ نه راولي.

## ۹- چشتيه:

موسس ئې معين الدين چشتي دی.

# دتصوف درې مدرسې

۱- د زهد مدرسه ۲- دکشف او معرفت مدرسه ۳- دوحدة الوجود مدرسه.

## لومړی مدرسه:

يعنی د زهد مدرسه چه اساس ئې په زهد اينبودل شويدی.
ددې مدرسې مميزات دادي:
دخدای عبادت، د دنيا له خوندونو او آسوده ژوند سره متارکه، دصالحو اسلافو متابعت او محبت.
په دې مدرسه کښې سړی له خلکو څخه ګوښه په خلوت کښې د خدای عبادت کوي. حسن بصری (۱۱۰ هجری) دځينو په قول ددې مدرسې لومړی فرد دی چه زهدئې دخدای له خوف سره دخپل حيات په هنداره کښې منعکس کړيدی.

## رابعة العدوية:

چه په (۱۳۵ يا ۱۸۰ يا ۱۸۵ هجري) کښې وفات شويده زهد ئې دخدای په محبت بنا دی ځکه ئې ويل: (وَعِزّتِکَ مَاعَبدَتُکَ خُوفاًمِن نَارِکَ وَلَارَغبَةً فِی جَنّتِکَ بَل کَرَامَةً لِوَجهِکَ الکَرِیمِ وَمُحَبَّةً فِیکَ).
ترجمه: ستا په عزت مې دې قسم وي چه ستا د اور له ډاره مې عبادت درته ندی کړی او نه مې دجنت لپاره. بلکه زه ستا دمکرم مخ (رضا) دپاره او ستا دمحبت په خاطر چه راسره دی عبادت کوم.
ددې له ويناؤ څخه يوه دا هم ده چه ويل به ئې: (زمونږ استغفار هم استغفار ته محتاج دی).
ابن خلدون د زهد مدرسه دتصوف دبنا اساس بولي او ددغه مذهب په تشريح او تحليل کښې وايي:
انسان له نورو حيواناتو نه په ادارک بيلېږي او ادارک ئې په دوه ډوله دی:
يو د علومو او معارف ادارک د يقين، ګمان، شک، اووهم په صورت. بل د احوالو ادراک لکه خوشحالی، غم، قبض اوبسط، رضا، غضب، صبر، شکر او داسې نور، دا دوه ادراکه اوس دعقلي حيات او شعوري حيات په نامه يادېږي.

د ابن خلدون له بحث څخه دا نتیجه په لاس راځي چه دصوفیانو طریقه په وجداني حیات او دنفس په محاسبه بنا ده چه په دوی کښې ذوقونه او نفسي مواجد پیدا کوي او له عقلی حیات نه ئې لرې باسي. د دوی مواجید هغه اذواق او احوال وي چه معروف الفاظ ئې سم تعبیر نشي کولی.
صوفیان وایي انسان دوه ولادته لري یو ولادت ئې هغه دی چه د مور له ګیډې څخه دنیاته راځي او ( ثاني ولادت ) دیوه نوي معنوي خلق په پیدا کولو صورت مومي یعنې دژوند دطریقې او سلوک بدلون دتصوف په اصطلاح(ولادت) ثاني دی.

## د دې مدرسې ځینې غړي:

### ابراهیم بن ادهم:

په (۱۶۱ هجري کښې متوفی) دی دبلخ شهزاده و او دوهم زیږنده (ولادت ثانی) یې په دې ډول وه: یوه ورځ ښکار ته وتلی و او خپل آس یې په ښکارپسې ځغلاوه چه ناڅاپه ئې دا غیبی غږ ترغوږه شو: ابراهیمه ایاته دهمدې دپاره پیدا ئې؟ لږه شیبه وروسته ئې دغه غږ بیا واورېده او د هاتف دغو آوازونو دده حال منقلب کړ، خپل آس او شاهانه لباس ئې یوه شپانه ته وسپاره دهغه کوڅو ئې واغوست د بیت الله شریف لورته ئې مخه کړه دنیا ته یې شا کړه مګر دومره کسب او کار به ئې کاوه چه ځانته حلاله روزي پیدا کړي او نور وخت په طاعت او عبادت تېر کړي.

### سفیان ثوري:

په (۱۶۱ هجري کښې متوفی) دی په ټوله معنی دعلمي شخصیت خاوند و او په زهد کښې ئې نظریه په دې ډول ؤ: زهد دا نه دی چه سړی زیږ او شډل لباس واغوندی او دښو خوراکونو له خوړلو ځان وساتي بلکه امیدلنډول او له طول امل نه ځان ژغورل زهد دی. یو سړی به مال لري او زاهد به وي بل به فقیر وي او دنیاته به ئې رغبت زیات وي یعنی زاهد به نه وي.
دی پدې عقیده وچه دډېر وښځولرل زهد ته څه زیان نه رسوي ځکه چه علی رضی الله تعالی عنه په اصحابو کښې ډېر زاهد و مګر څلور ښځې او نولس مینځې ئې درلودې. ده حکام بد ګڼل او له وینا وڅخه ئې یوه داده: ((که یو شرطي یعنې امنیت ساتونکی (دنن په اصطلاح پولیس) موولید چه ویده دی او لمونځ ترې قضاء کېږي لمانځه ته ئې هم مه پاڅوئ ځکه چه بیا خلکو ته زیان رسوي او خوب ئې بهتردی.)) له ده څخه چا پوښتنه وکړه که څوک خپل عیال ته دنفقې پیدا کولو دپاره په کار لګیاوي او جماعت ته په حاضرېدلو سره په هغه کار کښې نقصان پیښېږي نو څه به کوي؟ سفیان ثوري ورته وویل: مونځ دې بې جماعته وکړي.

### ذوالنون المصري:

(په ۲۹۷ هجری کښې متوفی) دی که څه هم د زهد د مدرسې غړی دی مګر لومړی سړی دی چه په تصوف کښې ئې دمعرفت دمذهب تمهید کیښود. دی د سنتو په متابعت کښې ډېر ټینګ و او دشریعت له احکاموئې هیڅکله غاړه نه غړوله مګر معاصرین ئې پرې بدګمانه و او دکفر و زندیقتوب تور پرې ولګول شو ځکه دی دمحاکمه کیدو دپاره له مصر نه بغداد ته راوستل شو او خلیفه متوکل ته ئې وړاندې کړ.
هغه ترېنه پوښتنه وکړه هغه څه چه ستا د کفر و زندیقتوب په باب ویل شویدي ته پکښې څه وایې: ذوالنون غلی و او هیڅ ئې نه ویل دوهم ځل بیا ترېنه دغه پوښتنه شوه، ده وویل: که انکار وکړم نو مسلمانان به مې دروغجن کړی وي او که تصدیق ئې وکړم نو ځان به مې دروغجن کړی وي څه چه ستا زړه وي هغه وکړه زه د ځان دپاره څه مرسته نه غواړم هماغه و چه متوکل پرېښود او دغه تورئې بې حقیقته وګاڼه.

## ابو القاسم جنید:

(په ۲۹۷ هجری کښې متوفی) دی اصلاً د نهاوند دی او په عراق کښې زیږېدلی دی.
دی له ډېرو لویو صوفیانو څخه و او د کتاب الله او سنت ډېر ټینګ پیرو و چه په تصوف ئې هیڅ راز طعن نه دی ویل شوی.
هغه حریت چه ځینې نور صوفیان ئې په معنیٰ کښې غلط شویدي دی پرې ډېر ښه پوهیدلی دی او ډېره ښه معنی ئې ورته پیدا کړیده. دی وایی له ماسویٰ الله نه د زړه آزادي حریت دی.

## اتحاد او حلول:

کله چه عربي امت د غزاګانو او فتوحاتو په وسیله له نورو ملتونو او مدنیتونو سره ګډون وموند او له نورو ثقافتونو سره اشنا شو نو مسیحی، زردشتی، مزدکي او مانوي مذهبونو شیعي حرکت او د هند بودائي تعلیم فنا (نیروانا) په اسلامي تصوف کښې خپله اغیزه څرګنده کړه او ځینې نوي خبرې را پیدا شوې.
په دریم هجري قرن کښې د اتحاد او حلول فکر مینځ ته راغی چه د کشف و معرفت مدرسې او بیا د وحدة الوجود د مدرسې باعث او موجب ئې ګڼلی شو.
ابن خلدون وایي: د صوفیانو اسلاف د حجاب د کشف طرفدار نه و، دوی حتی الامکان د اتباع او اقتداء رعایت لازم ګاڼه او له شرعي حدود څخه ئې تجاوز نه کاوه مګر څه چه را تلونکي دي هغه راځي او څوک ئې مخه نشي نیولی.
دین او مذهب هم د تطور لاره په مخکښې لري او له یوه حاله بل حال ته انتقال کوي.
په ۲۴۳ هجري کښې حارس محاسبي خپله رساله (رعایة حقوق الله) د طریقت د معاملو په توضیع کښې ولیکه چه د خدای په مینه کښې استغراق د خدای د معرفت وسیله ګڼي د دې رسالې خطي نسخه په اکسفورد کښې موجوده ده چه مارګریت سمیت په ۱۹۴۰ م کښې نشر کړه.
امام غزالي د کشف او معرفت د مدرسې زعیم د خپلې طریقې په وضع کولو کښې په همدغه رساله تیکه کوي. هغه فلسفي اساس چه د کشف او وحدت نظریات پرې بنا دي خلاصه ئې دا ده:
الله تعالی(ج) انسان په خپل صورت پیدا کړ (خَلَقَ آدَم عَلیٰ صُورَتِه) او انساني نفس دومره وسعت لري چه عالم پکښې ځای شي، په عالم احاطه وکړي او د کل صورت پکښې متجلی شي. الله تعالی په ټولو شیانو احاطه لري او په ده باندې هیڅ شی محیط ندی.
عالم انسان کبیر دی او انسان عالم صغیر دی.
علی ابن ابیطالب چه ځینې نور مورخین ئې لومړی شخص ګڼي چه رسول الله (ص) په تصوفي علم خاص کړیدی د غه مفهوم ته په دې ډول اشاره کوي:

وتحسب انک جرم صغیر وفیک انطوی العالم الاکبر

وایي چه عارف په هر ځای او هر څه کښې خدای لټوي او په دغه ریاضت کښې هغه استعداد او هغو حقایقو ته هم متوجه کېږي چه د ده په نفس کښې دي. دلته ده ته یو دهشت او غرور پیدا کېږي او له خولې ئې (انا الحق) او (مَافِی الجهَةِ غَیرَ الله) را اوزي چه حلولیون همدغه کسان دي.
غزالي وایي: نصرانیانو مسیح ته وکتل او د خدای نور ئې پکښې په ځلیدو ولید لکه څوک چه ستوری په هنداره یا اوبو کښې ووینې او ګمان وکړي چه ستوری په هنداره یا په اوبو کښې دی.
دوی هم په همدغسې غلطۍ کښې واقع شوه او وغولیدل. حلولیون د هندوانو د تصوف د فنا او اتحاد له تاثیر لاندې هم راغلي دي. او فکر کوي چه په نفس کښې د حیواني قواؤ وژل او له بشري طبیعت نه ځان خلاصول فنا ده.

په اسلامي تصوف کښې د کشف او وحدت د تعلیماتو په ضمن کښې د اتحاد او فنا مذهب او د اجنبي تصوف اغیزه لیدلی شو مګر بیا هم اسلامي صفت پکښې غالب دی چه اساس ئې دغه قدسي حدیث دی: (مَاتَقَرّبَ اِلَي عَبدِی بِشَیْئٍ اَحَبّص اِلَیَ مِن اَدَآ مَا فَرَضتُ عَلَیهِ وَلَایَزَالُ عَبدِی یَتَقَرّبُ اِلَیَ بِاالنَوَافِلِ حَتیٰ اُحِبُهُ وَمَن اَحبَبتُهُ کُنتُ لَهُ سَمعاًوَبَصَراًوَیَداًوَمُؤَیِداً) د اتحاد او حلول صحیح تفسیر د اسلامی تصوف په نظر هغه دی چه (جمع او فرق) ورته وایي.
هرکله چه پاک خدای انسان په خپل صورت خلق کړاو انساني نفس په عالم باندې د احاطې قابلیت ومونده نو فنا له هغو صفاتو نه ځان خلاصول دي چه د کشف و معرفت مخه نیسي او د هغو صفاتو ساتل دي چه انسان د هغه علم اهل ګرزوي چه خدای یې ورپه برخه کوي. د اتحاد او حلول په خاوندانو کښې بایزید بسطامي د هندوانو د تصوف په فنامتاثرشوی ؤاو حسین بن منصور حلاج د مسیحت د حلول د عقیدې له اغیزې لاندې راغلی و.
بایزید بسطامی ( ابویزید طیفوربن عیسیٰ بسطامي ) په یوه قول په (۲۶۱ هجري) کښې او په بل قول په ( ۲۳۴ هجری ) کښې مړشوی دی چه پلارئې زردشتي اونیکه ئې مجوسي ؤ ده ته ډېر اقوال منسوب دي چه د صوفیانو په اصطلاح (شطحات ) بلل کېږي. (لااله الا اناَفاعبُدُونِی سُبحَانِی مَااَعظَمَ شَانِی ).
ابومغیث حسین بن منصور حلاج په ۲۴۴ هه په فارس کښې زیږېدلی او په عراق کښې لوی شویدی. مشایخ دده په باب اختلاف لري، ډېرئې ردوي اولږئې قبلوي. دی د حلول او اتحاد ډېر مشهور سړی دی. دده آرا غامض او تیاره دي، د انالحق وینا ده ته منسوبه ده، ځینې کسان ئې له دغې وینا سره بیا هم د اولیاؤ او شهداؤ په ډله کښې شمیري.
غزالي دده یو شمیر اقوال راغونډ کړیدي او دی ئې د سلفو او د اهل سنتو له عقیدې نه مخالف ګڼلی دی.
د خلیفه مقتدر په عصر کښې چه دده د محاکمه کولو د پاره د فقهاو یو هیئت تشکیل شو د هیئت ځینو غړو دده د تکفیر په فتوی کښې خپل تردد څرګند کړ ځکه چه آرا ئې غامض و او یقیني فتوی صادرول ئې مشکل کار وګاڼه.
وایي چه دده محاکمې موجب څلور اتهامه و:
۱- دده تعلق له قرمطیانو سره.
۲- انا الحق ویل.
۳- دده په الوهیت باندې دده د پیروانو عقیده.
۴- د حج په باب دده مخالف نظر.
وایي حلاج د بیت الله الحرام حج فرض نه ګاڼه او په پټه ئې قرمطي مذهب ته خلک رابلل.
دده له وژل کیدو نه نهه کاله وروسته قرمطیانو په مکه حمله ویوړه او حجر الاسود ئې تر ښه په اختطاف ویووړ. حلاج په کیمیا او تصوف کښې د تالیفاتو خاوند دی او معتزله ؤ ته ئې تمایل درلود.
ده ځان په غموض او خفا کښې په کراماتو او خارق العاده اعمالو کښې پټ کړی وچه دده نفوذئې په بغداد کښې دده په اتباعو باندې قوي کړی و. حتی چه د خدایي حد ته ئې رسولی و او دده په باب دا عقیده موجوده وه چه مړه ژوندی کولی شي، غیب کشفولی شي او په یوه وخت کښې ځان څو ځایه څرګندولی شي.
ده د فارسیت سیاسي غایه درلوده او په سر و اخفا کښې ئې د شیعه ګانو جمعیت سره قوي ارتباط درلود. ده له محی الدین ابن عربي او د هغه له شاګرد ابن فارض څخه درې قرنه د مخه د ادیانو د وحدت آواز اوچت کړ او په دغه برخه کښې د قدامت حق لري.

## د وهمه مدرسه ( کشف و معرفت):

ددې مدرسې زعیم ابو حامد محمدبن محمد غزالی په (۴۵۰ هه) کښې زیږېدلی په طوس او نیشاپور کښې ئې خپل تعلیم سرته رسولی دی. په شرعي علومو په منطق فلسفه او حکمت کښې استاذ شو او د بغداد په نظامیه مدرسه کښې د مدرس په حیث ومنل شو.

دهغه وخت خلک ئې فضلیت، فصاحت، دقت او حسن کلام ته حیران پاتې وا او ډېر شهرت او محبوبیت ئې په برخه شو. ثلور کاله ئې په دغه ډول تېر کړه. او د ۴۸۸ هجري د رجب په میاشت کښې یو شاذ او نادر نفسي حالت ور ته پیښ شو چه ژبه ئې کلي شوه او له تدریس نه محروم شو. قوائې ضعیفه شوه او طبیبانو ئې څه علاج ونشو کړی.
دی له بغداد نه شام ته لاړ. دوه کاله ئې هلته په عزلت، خلوت، ریاضت او مجاهده کښې دنفس په تزکیه تېر کړه او دخدای په ذکر ئې زړه روښانه شو. بیا له دمشق نه بیت المقدس ته لاړ او پس له هغه دحج په نیت حجاز ته لاړ او یوولس کاله ئې خلوت ته دوام ورکړ چه په دغه موده کښې ورته ډېر څه کشف شوه. دی وایي دتصوف لومړی شرط له ماسوی الله نه د زړه کامله تصفیه او بیا دخدای په ذکر کښې کامل استغراق او بالاخره په کلي ډول فنافی الله کیدل دي.
دی دانساني ادراک په باب وایي: انسان ته خدای د ادراک قوه ورکړه چه دموجوداتو له عالمه اطلاع حاصله کړي. ادراک دغه اطلاع دحواسو په وسیله حاصلوي او انسان له محسوساتو سره اشناکوي. له ادراک نه پورته ذوق دی چه انسان ته د تمیز قوه بخښي او په دغه وسیله له محسوساتو نه علاوه ذوقي پوهه پیدا کوي چه هغه دحس په وسیله لاس ته نه راځي له ذوق نه پورته عقل دی چه د امورو ادراک پرې کېږي او د واجباتو، مستحیلاتو، جایز او ناجایز پیژندګلوي ورپورې تړلې ده.
په دغه سلسله کښې هغه څه چه په عقل پېژندل کېږي په ذوق ئې پېژندنه نشي کیدی او هغه څه چه ذوق یې درک کوي حواس ئې درک نشي کولی، په حواسو کښې هم څه چه په غوږونو محسوسېږي سترګې ئې احساس نه کوي او هغه چه په سترګوئې احساس کوو په لمس ئې نشو کولی. له عقل نه پورته یو بل حالت دی چه هلته نورې سترګې دغیب لیدو ته پیدا کېږي او دغه ادراک دعقل دپاره میسر ندی.
همدغه ادراک دی چه دکشف او معرفت په نامه یادېږي او له عقله ماورا دی.
دغزالي په نظر ښتینی خوبونه (رویای صادقه) هم د غیب کشف دی. دجذب هغه خاص حالت چه انسان پکښې لکه مړی بیهوشه وي او احساس ترېنه زایلېږي دغیب کشف پکښې صورت مومي. هغه قوه چه دغه دمعرفت ادراک پرې ولاړ دی غزالی ترېنه په قلب او روح یا نفس تعبیر کوي.
دعلم په باب وایي: علم یا تعلیمي وي یا الهامي.
تعلیمی علم هغه دی چه په اکتسابي ډول د زده کړی په وسیله حاصلېږي او الهامي علم دقلب په تصفیه او دنفس په تزکیه د الهی کشف په وسیله پیدا کېږي. تعلیمي علم له خارج څخه د حواسو له لارې راځي او الهامي علم په قلب هغه وخت تجلی کوي چه قلب له ماسوی الله نه بالکل پاک شي او دخدای په ذکر او فکر کښې دومره مستغرق شي چه دفنافی الله مرتبې ته ورسېږي.
دغزالي په نظر د رسول الله (ص) لومړنی حال همدغه و چه د حرا غارته ئې مخه وکړه او په خلوت کښې ئې دزړه معامله یوازې له خدای سره وه. غزالي په دې عقیده دی چه په حس باندې کامل اعتماد په کارنه دی او محسوسات له غلطۍ نه په امان کښې نه دي.
سترګې او نظر چه یوه قوي حاسه ده دیوه دیواله سیوری ځای په ځای ولاړ وینې او غیر متحرک ئې ګڼي مګر یو ساعت وروسته دتجربې او مشاهدې له مخې معلومېږي چه له پخوانه اوړد شوی او حرکت ئې کړیدی. داحرکت دفعتاًاو بغتتاً ندی پیښ شوی بلکه په تدریخ سره ذره ذره امتداد مومي او په ځای نه درېږي مګر نظرئې په هر آن کښې احساس نشي کولی او ظاهراًورته ځای په ځای ولاړ ښکاري. یو ستوری زمونږ په نظر کښې دیوه دینار په اندازه کوچنی معلومېږي مګر هندسي دلایل دا ثابتوي چه له ځمکې نه لوی دی.
دغه ډول حکمونه چه دحس حاکم ئې کوي دعقل حاکم ئې ردوي او غلط ئې ګڼي. چه دحس دغه حال دی دعقل به ولې نه وي، کیدی شي چه له عقلي ادراک نه هغه خوا یو بل حاکم وي چه دعقل احکام ردکړي او غلطي ئې څرګنده کړي.
تاسو په خوب کښې څه وینئ او هغه درته واقعیتونه ښکاري چه هغه وخت پکښې هیڅ شک نلرئ کله چه راویښ شئ پوهېږئ چه هغه محض خوب او خیال وا او حقیقت نه و نو هغه څه چه په ویښه دعقل او حس په وسیله واقعیت ګڼئ ښائي

په تاسې يو بل حالت راشي چه دغه ويښتوب مو نسبت هغه حالت ته لکه خوب داسې وي او هغه وخت پدې پوه شئ چه دغه عقلي توهمات مو هم يو خوب او خيال و.
صوفيان فکرکوي بلکه يقين لري چه که څوک له خپلو دغو حواسو څخه غايب شي داسې حالات پرې راځي چه دغه معقولات ورته واهي معلومېږي.
ښايي چه مرګ هم دغسې حالت وي او نسبت دغه ژوند ته هغه ويښتوب وي لکه چه رسول الله (ص) فرمايي: ( الناسُ نيام فاذا ماتُوا انتبهوا ) خلک ويده دي کله چه مړه شي نو راويښېږي.
امام غزالي فلاسفه په درې ډلو ويشي: دهريون، طبيعيون، الهيون. دهريون هغه بولي چه د خالق له جودنه منکر دي او په ماده ايمان لري. ددوی په زعم عالم هميشه بی صانعه بنفسه موجود دی چه تل ترتله حيوان له نطفې نه او نطفه له حيوانه پيدا کېږي.
طبيعيون هغه دي چه د خدای (مدبرقوت) په وجود قايل دي مګر له بعث او حسابه منکردي، جنت، دوزخ او قيامت نه مني.
نه طاعت ته په ثواب قايل دي او نه معصيت ته په عذاب.
الهيون ديونان فلاسفه دي چه ارسطوئي وروستی امام دی او ابن سينا او فارابی ددوی فلسفه عربي ته رانقل کړيده.
غزالي په تفصيل سره دالهيونو په فلسفه کښې بحث او مناقشه کوي.
په طبيعی فلسفه کښې هغه څه قبلوي چه له دين سره منافات نلري او په ځينو معينو مسايلو کښې ورسره مخالفت لري چه هغه ئې په خپل کتاب (تهافت الفلاسفه) کښې بيان کړي دي. په همدغه کتاب کښې غزالی د الهيونو (۱۷) مسئلې رد کړيدي. کله چه حجت الاسلام امام غزالی له فلاسفه وسره خپله مناقشه پای ته رسوي، دباطنيه فرقې له تعليماتو سره منافشه شروع کوي.
باطنيه فرقه دفاطمي شيعه ګانو يوه شعبه ده چه د دعوت شاته ئې سياسي غايه موجوده وه، ده د باطنيه فرقې په ردکښې پنځه کتابه (المستظهري، حجة الحق، مفصل الخلاف، الدرج المرقوم بالجداول، القسطاس المستقيم) وليکل چه له ډېر دقت نه ئې پکښې کاراخيستی دی او ډېر موفق دی.
يو امريکائی عالم (پروفيسرماکدونالد ) په خپل کتاب ( تطورالفقه الاسلامی ) کښې وايي: غزالي تراوسه څنګه چه ښائي هغسې چاندی پيژندلی.
دقاهرې په جامعه کښې دتصوف استاذ (دوکتورمحمد مصطفی حلمي) دغزالی په باب وايي: دغزالي په شخصيت کښې جلال او قوت په مذهب کښې عمق او دقت په هغه اندازه وچه پخپل عصر او په خپلو معاصرو ئې استيلا وکړه او هغه اهل سنت ئې هم له تاثيرلاندې راوستل چه وروسته ترده راغلل.
هغه لوی خطرچه تصوف ته پيښ وا و د زنديقتوب په نظر ورته کتل کيده يعنی له کتاب الله او نبوي سنتو څخه مخالف بلل کيده او دشيعه ګانو، اسماعيليانو اوباطنيه ؤعقايد پکښې راګډ شوي و غزالی ئې مخه ونيوله او تصوف ته ئې نوی ژوند وبابنه، دخلکو ښه نظرئې ورته جلب کړ او دصحيح دين په ښودنه ئې ددين لوی خدمت سرته ورساوه.
ده وکړی شوه چه خپل رسالت دايمان په حرارت دبيان په بلاغت د اسلوب په براعت او قوي حجت پای ته ورسوي او او سني تصوف ته نجات ورکړي.

## دريمه مدرسه (وحدة الوجود):

دتصوف وروستۍ مرحله د وحدة الوجود مرحله ده. په دې مرحله کښې مجازي وجود په مطلق حقيقي وجود کښې محوه کېږي او ماسوی الله له مينځه ځي ځکه دتوحيد دکلمې معنی هم تغييرکوي يعنی لا موجود الا الله د لااله الا الله معنی ده.

د وحدة الوجود معتقدين وايي ماده بالذات وجود نلري اوله الهی قوت څخه وجود کسبوي.
دمادي وجود ، د ادراک په قوې پورې تړلی دی که ادراک نه وي د موجوداتو تفصیل او تحدید به هم نه وي دوی وایي همدغه الهی قوه ده چه له ذرې نه نیولی ترلوړو موجوداتو پورې هرشي کښې وجود لري نو الله تعالی په هرشي کښې دی او هرشی له ده څخه دي.
ابن دهقان ددغه مذهب په تائید کښې وايي ددې مذهب دخاوندانو وینا دحکماؤ له هغه قول سره شباهت لري چه درنګونو په باب وایي د رنګونو وجود په رڼا پورې تړلی دی که رڼا ورکه شی درنګونو موجودیت له مینځه ځي.
همدارنګه دمحسوساتو وجود دحسي ادراک د وجوداغیزه ده لکه چه دمعقولو او موهومو موجوداتو وجود دعقلي ادراک وجود سره تعلق لري اهل وحدت له علم الیقین نه پورته دعلم دپاره په دوو لوړو مرتبو قایل دي چه علم عین الیقین اوعلم حق الیقین ئې بولي.
علم یقین داسې مثال لري لکه مسلمان چه د تواترپه وسیله دا علم لري چه په مکه کښې بیت الحرام وجودلري چه کعبه ئې بولي.
هغه څوک چه بیت الله ته لاړشي او په سترګوئې ووینی نوعلم الیقین ئې په علم عین الیقین بدل شي اوعقلي علم شهودي علم شي او ذوق هم پیداشي.
همدغه سړی چه دکعبې له لیدو وروسته الله تعالی (ج) ته ددې بیت په نسبت په نسبت او کیفیت اونورو خصوصیاتو کښې عمیقه او دقیقه پوهه حاصله کړي نو دغه علم ته دحق الیقین علم ویل کېږي.
په بل عبارت علم الیقین هغه دی چه له صحیح دلیل څخه لاس ته راشي او څه شک او شبه پکښې نه وي. دعین الیقین علم هغه دی چه په کشف او مشاهده پیداشي، دحق الیقین علم هغه وخت په زړه کښې ځای نیسي چه سړی دمشهود امر په باطن اوحقیقت پوه شي. په دغه اساس په یوه شي باندې علم لرل درې مرتبې لري چه په هره مرتبه کښې یقین موجودی مګر لومړی یقین نسبي دی، دوهم افتراضي اودریم حقیقي دی چه اهل وحدت ئې مطلوب ګڼي.
دوی په نورو مواردوکښې هم دغو درو مرتبو ته قایل دي. دتقوی په باب وایي: دعوامو تقوی په ژبه ده، دخواصو تقوی په ارکانو ده او خاص الخاصه تقوی د زړه ده.
همدارنګه: دعوامو صدق په اقوالو کښې، دخواصو صدق په افعالو کښې او خاص الخاص صدق په احوالو کښې دی.
ایمان هم درې ډوله دی: دقول تقلیدي ایمان، دفهم استدلالي ایمان، دمعرفت شهودي ایمان چه مقلدین ئې په خوله اظهار کوي د استدلال خاوندان یې په ذهن کښې تصور کوي او عارفان ئې د اسرارو له مخې مشاهده کوي. دمقلد مؤمن، دمستدل مؤمن او دعارف مؤمن ایمان دمومن به په لحاظ یو دي او اختلاف ئې یوازې په ظهورکښې دي.

## محی الدین ابن عربی: (په ۲۳۸ هجري کښې متوفی)

د وحدة الوجود د مدرسې زعیم همدغه شخص دی چه مستشرقین ئې د اسلام ددیني فلسفې لوی عبقری مفکر ګڼي اوصوفیانو ده ته دشیخ الاکبر لقب ورکړی او په خاتم الاولیا هم شهرت لري.
دبحث اوتحقیق خاوندان وایي: ددې مدرسې له برکته د اسلامي تصوف تعلیمات تکمیل شوه او تصوف قایم بالذات علم وګرځیده چه په اروپا ، آسیا او افریقا کښې ئې دصوفیانو طریقې خپرې کړې.
ددې مدرسې پیروان عالم د الله تعالی دوجود مظهربولي چه ددې مظاهروشاته یوحقیقت موجود دی لکه چه دعقایدو او مذاهبو ترشاهم یوحقیقت وجودلري چه له نفس سره جهاد اوخدای ته د رسیدوهڅه ده. کوم حقیقت چه د شریعت له ظواهرونه هغه خوا ځای لري هغه دشریعت باطن او دشریعت روح دی.
دوی د الله تعالی په کتاب اونبوي احادیثو کښې ظاهر اوباطن ته قایل دي. په همدغه اساس ابن عربي قرآن کریم تفسیر کړی چه له ظاهري تفسیرڅخه پکښې انکارنه دی شوی مګرنوي مفاهیم ئې کشف کړي دي. علم حقیقت ئې له علم شریعت څخه بیل ګڼلی چه شریعت لکه ونه او حقیقت ئې میوه بولي.

شعراني په دغه مورد کښې وايي: تصوف په شرعي احکامو باندې دعمل کولو لب لباب دی.
چاچه تصوف مستقل عمل ګڼلی اوچاچه دشرعي احکاموله علم سره يوګڼلی دواړه حق په جانب دي اومثال ئې داسې دي لکه چه علم معاني اوبيان څوک مستقل علم بولي اوڅوک ئې دنحوې دعلم جز بولي.
ابن عربي وايي: دکتاب الله اوسنتو تفسير چه متصوفين ئې کوي له ظاهر څخه ئې عدول مه ګڼئ آيت اوحديث دخلکو دفهم مطابق يو ظاهري مفهوم لري چه انساني عرف پرې دلالت کوي مګر دنورو فهمونو دپاره نورمفاهيم هم پکښې شته چه دهرچا نه نصيب کيږي.
په يوه نبوي حديث شريف کښې هم راغلي دي چه هرآيت ظاهراوباطن، حداو مطلع لري تراووا ويا بطنوپورې. په دغه اساس يو ولي اوصوفي هيڅکله نوی شريعت نه راوړي بلکه په کتاب او سنت کښې نوی فهم راوړي.
ابن عربي ټول موجودات په حقيقت کښې يو شی ګاڼه چه هغه دالله تعالی حق وجود دی يعنې الهي حقيقت ئې حقيقې وجود او عالم ئې دهغه ظاهري وجود ګاڼه.
دابن عربي د وحدة الوجود نظريه داهل کلام له ډيرو مناقشو سره مخامخ شوه چه دی ئې دخپل اصلي وطن اندلس په پريښودو مجبور کړ چه لومړی مصرته لاړه او بيا له يوه ښارنه بل ته اوله بل نه بل ته ورته چه بالاخره په دمشق کښې په ۶۳۸ هجري کښې وفات شو.
ابن عربي خپل مذهب دکامل انسان په حقيقت بنا کړ چه د ده دتعليماتو محور وه. دی په هرموجود کښې دخدای يو صفت متجلي ګڼي او يوازې انسان ته په دې حيث قايل دی چه ټول الهی صفات پکښې هغه وخت تجلی کوي چه دخدای پاک په وحدانيت مستغرق شي، دانسان کامل اصطلاح له همدې څخه نشات کړيدی او اساسی ځای ئې نيولی دی.
ابن عربي په خپل کتاب (فصوص الحکم) کښې وايي: چه حضرت محمد (ص) په انساني نوع کښې اکمل موجود دی ځکه اول او آخر ګڼل شويدی. دی هغه وخت نبي وچه آدم بين الما والطين ؤاو وروستی نبي ( خاتم النبيين ) هم دی دی.
پدې کتاب باندې ډيرو متصوفو فيلسوفانو شرحې او تعليقات ليکلي دي، په دغه موضوع کښې لومړنی مرجع همدغه کتاب دی.
دا مشهوره ده چه ابن عربي په سلهاؤ کتابونه اورسالې ليکلي دي چه ډيرئې ضايع شويدي. دا دوه کتابونه ( فصوص الحکم - فتوحات مکيه ) د وحدة الوجود او انسان کامل په موضوع کښې لومړنی اهميت لري.
ځينې مسيحي ايمه ؤ د ابن عربي پيروي کړې او دانتې دايطاليا مشهورشاعر په خپلو ځينو اثاروکښې دده مديون اومرهون دی.
دغه اسلامي صوفي فيلسوف په خپلو ځينو نظرياتو اروپائي فيلسوفان مسحورکړي چه په راس کښې ئې (سپينوز- اوهګل) واقع دي.
سيدجمال الدين افغان هم دابن عربي دوحدة الوجود دمدرسې له اتباعو څخه دی او دهغه شاګرد شيخ محمد عبده هم ددغې مدرسې پيروو چه ( رسالة الواردات ) لومړی تصنيف ئې په وحدة الوجود باندې بحث کوي.
شيخ محی الدين ابن عربي دوحدة الوجود د مدرسې باني د يوه واحد حقيقت په لټه کښې هغه حد ته ورسيده چه د ټولو اديانو حقيقت ئې يو ګاڼه او ددوستی اومحبت د واحد دين اساس ئې کيښود چه ډيرپيروان ئې پيدا کړه.
دده دا بيتونه دغه مفهوم ډيرښه اداکوي چه وائي:

| | |
|---|---|
| لقد کنت قبل اليوم انکرصاحبی | اذا لم يکن دينی الی دينه دان |
| فاصبح قلبی قابل کل صورة | فمرعی الغزلان وديرالرهبان |
| ومعبد اوثان وکعبة وطايف | والواح توراة ومصحف قرآن |
| ادين بدين الحب کيف توجهت | رکائبه فللحب دينی وايمانی |

مطلب ئې دادی چه پخوا بـه کـه دچادین زما دیـن تـه نږدې نـه و نـو زه بـه ئې منکـر وم. اوس مې زړه هرصـورت قبلـوي دغزالانوورشـو ، درهبانانودپـاره دیـر ، دبتـانو دپـاره معبـد ، دطـواف کوونکـو دپـاره کعبـه، دتـورات الـواح اودقـرآن مصحف زما زړه دی. هرې خوا ته چه مخه کوم دین می دمحبت دین دی او ایمان مې هم محبت دی.

## مولانا جلال الدین:

دمولویـه طریقـې خاونـدهم دمـذاهبو او ادیـانو اسـاس یـوګڼي او پـه دې عقیـده دی چـه دمختلفـو او راز راز دینونـو داختلافاتو منشا دا ده چه دمختلفو هیوادونو اوښارونوخلک یود بل په ژبه نه پوهېږي او په لفظي نزاع اخته دي.
دامفهوم مولانا په مثنوی کښې په سمبولیک او کنائي شکل دمختلفو هیوادونو د څوتنو په هغه داستان کښې بیانوي چه یو دینار ئې درلود او ټولو غوښتل چه انګور پرې واخلي مګر په ژبه سره نه پوهیدل اوهرچا پـه خپلـه ژبـه دانګـورو مفهوم په بل لفظ اداکاوه او په الفاظو ئې مشاجره وه ترڅوچه یو داسې سړی پیدا شو چه د ټولو پـه ژبـو پوهیـده او دغـه منازعه ئې دانګورو په اخیستلو له مینځه یوړه.
تصوف د مختلفو مدارجو اومراحلو په طی کولو دمعرفت او حقیقت ډېر پلټونکی ځانته جلب او جذب کړه او ډېرنوي معاني او مفاهیم ئې په اسلامی عرفان کښې خوندي کړه. دوکتور(مارتن لنبخر ) چه دقاهرې په جامعه کښې دانګلیسی استا ذ و او داسلام له منلو وروسته(ابوبکر سراج الدین ) وبلل شو وایې: زه تصوف اسلام تـه جذب کـړم کوم مثـالي انسانیت او ذوقي اداب چه په تصوف کښې شته په بل ثقافت کښې نشته.
ابن سینا د بلخ مشهور فیلسوف هم په اخرعمر کښې تصوف ته مخه کړه اوپه خپل کتاب (اشارات ) کښې ئې مهمه برخه تصوف ته تخصیص کړه.
ابن خلدون مشهورمورخ اولوی محقق په تصوف کښې د ډېر عمیق اودقیق نظرخاوند چه عرفاني اونفسیاتي تحلیلات ئې ډېرلوړمعنوی ارزښت لري تصوف ته په ډېر درانه نظرګوري.
دغه راز ډېر محققین اومفکرین په هرځای اوهروخت کښې شته چه تصوف دانساني کمال د روحي رشد او عرفاني بلوغ اساس بولي اوډېره نمانځنه ئې کوي.

## دتصوف په باب ځینې آیتونه او حدیثونه:

په تیرو بحثونوکښې داڅرګنده شوه چه تصوف له قرآن کریم اوسنتو څخه ماخوذ دی حتی چه تصوفي اصطلاحات هم په قرآن کریم کښې ذکر شویدي داهم وویل شوه چه د تصوف شروع له زهد او ریاضت څخه شویده او درسول الله(ص) اصحاب لکـه حضـرت علي او اصـحاب صفه پـه زهـد ډېـر ټینـګ و او پخپلـه حضـرت محمـد (ص) پـه روژونیولـو ، پـه لوږوتیرولو اوپه قیام اللیل دزهد او ریاضت عملي تعلیم خپلو اصحابوته ورکړیعنې دتصوف لومړی مدرسه دصدر الاسلام یادګاردی او د پیغمبر زاهدانه اوفقیرانه ژوند ئې ډېرښه سرمشق دی.
ځینې آیتونه اونبوي احادیث چه دتصوف ددوهمې مدرسې (کشف ومعرفت ) بنیادټینګوي او دباطني علم اساس بلل کېږي هغه هم په خپل ځای کښې توضیح شوه لکه دعلم وراثت او دعلم لدني بحث اومذاکره یانور. د دغـو ټولـو اسـنادو اومدارکو په نظرکښې نیولو سره ځینې نور آیتونه اونبوي احادیث هم شته چه ظاهراً لـه تصـوف سـره معـارض ښکاري یاتصوف مقیدکوي.
د تصوف په لومړۍ مدرسه یا پـه زهد او نوافلو باندې څه اساسي اعتـراض نشـته تـش دومـره ویـل پکـاردي چـه زهـد اونفلي عبادت باید د اهل وعیال دنفقې پیداکولو اونوروحقوقومانع نشي اونه دځان د دومره ضعیفه کولو موجب شي چه د ژوند فعالیت غیرممکن وګرځوي، په دغه موردکښې داحدیثونه د ذکر وړدي:

۱- عبدالله بن عمر وايي: زه له رسول الله (ص) سره مخامخ شوم هغه راته وفرمايل: هغه ته ئې چه وايي شپه په قيام او ورځ به په صيام تيروي، ما وويل هو ! ما داو يلي دي. رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل: (فَقُم وَنُم وَصُم وَ اَفطِر وَصُم مِن كُلِ شَهرٍ ثلاثة اَيَامٍ وَلَكَ مِثلُ صِيَامِ الدهرِ) يعنى د شپې يا څيره او ويده كيږه روژه كيږه او بوزه كيږه. په هره مياشت كښې درې ورځې روژه نيسه او دا به ستا د پاره داسې وي لكه د ټول عمر روژه. ابن عمر په ځواب كښې وويل: زما طاقت تردې زيات دى. رسول الله (ص) وويل نو يوه ورځ روژه او سه او دوه ورځې بوزه ابن عمر بيا وويل:

تردې مې هم طاقت ډېردى. رسول الله (ص) وويل يوه ورځ روژه او يوه ورځ بوزه اوسه، دا د داؤد عليه السلام روژه او اعدله روژه ده.

هغه بيا خپل طاقت زيات وښود او رسول الله (ص) وفرمايل تردې افضله او بهتره بله روژه نشته.

۲- ابي برده روايت كوي چه د عثمان بن مظعون ښځه د رسول الله صلى الله عليه وسلم بيبيانو ته ورغله چه هيئت او سر و صورت ئې ښه نه و بيبيانو ورته وويل: په تا څه شوي دى؟ په قريشو كښې خو ستا ترمېړه بډاى سړى بل نشته، د عثمان ښځې وويل هغه شپه په قيام تيروي او ورځ په صيام مونږ له هغه نه څه بهره نه لرو. بيبيانو چه د غه حال رسول الله (ص) ته وو ايه او هغه عثمان بن مظعون وليده ورته ئې وويل: آيا تا په ما پسې اقتدا نده كړې؟ هغه وويل څنګه نه؟ رسول الله (ص) وفرمايل: ته د ورځې روژه او د شپې ولاړ اوسې؟

عثمان وويل هو ! زه همدغسې كوم. رسول الله (ص) وفرمايل:

(لاتصفعَل اِنّ لِنَفسِكَ عَلَيكَ حَقّاً وَاِنّ لِجَسَدِكَ عَلَيكَ حَقّاً وَاِنّ لِاَهلِكَ عَلَيكَ حَقّاً فَصَلِ وَنُم وَصُم وَاَفطِر) يعنى داسې مكوه، نفس دې هم په تا حق لري جسد دې هم د رباندې حق لري او اهل دې هم. مونځ هم كوه، ويده كيږه هم روژه هم نيسه، او خوره ئې هم. د كشف و معرفت په باب دا سوال پيدا كيږي چه د صوفيانو دا ادعا چه دوى د تصوفي مقاماتو او احوالو په طى كولو د غيب په كشفولو بريالي كيږي له ځينو آيتونو سره ظاهراً موافقت نلري ځكه چه د غيب علم په خداى پاك پورې خاص دى او پيغمبرانو ئې هم دعوه نده كړې په دغه مورد كښې دا آيتونه د ملاخطې وړدي:

۱- (قُل لاَّ أَقُولُ لَكُمْ عِندِي خَزَآئِنُ اللّهِ وَلا أَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلا أَقُولُ لَكُمْ إِنِّي مَلَكٌ إِنْ أَتَّبِعُ إِلاَّ مَا يُوحَى إِلَيَّ -سورت انعام آيت ۵۰) ترجمه: و وايه نه وايم تاسو ته ما سره د خداى خزائې دي او نه وايم په غيب پوه يم او نه وايم تاسو ته زه ملك يم پيروي نه كوم مګر د هغه څه چه وحى راته شوي وي.

پدې آيت شريف كښې دا څرګنده شويده چه پيغمبر علم غيب نلري مګر چه وحى ورته وشي، په وحى كښې د غيب كشف شامل دى او كيدى شى چه د وحى په وسيله غيبى پوهه ورته حاصله شى.

۲- (وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لاَ يَعْلَمُهَا إِلاَّ هُوَ - سورت انعام آيت ۵۹) د غيب كلى ګاني له خداى سره دي بې له هغه څوك پرې نه پوهېږي.

۳- (قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ -سورت نمل آيت ۲۵) و وايه ! په غيب باندې نه پوهېږي هغه چه په اسمانو نو او په ځمكه كښې دي مګر الله پاك (ج).

ټول علم غيب يوازې د خداى پاك سره دى او بالذات په ده پورې اختصاص لري چه بې له الهي څخه چا ته نه نصيب كيږي. كه الله پاك وغواړي نو ځينې بندګان په ځينو غيبي چارو خبروي مګر هغه ته عالم الغيب نه ويل كيږي.

له علم الغيب څخه مراد محض ظن او تخمين نه دى او نه هغه علم چه له قراينو او دلايلو څخه حاصليږي بلكه هغه علم دى چه په قرينه او دليل بنا نه وي. نو د غه راز آيتونه چه په ظاهري نظر د صوفيانو د كشف د شهود له اصل سره منافي معلوميږي څه حقيقى مخالفت ورسره نلري. څوك بايد دا فكر ونكړي چه تصوف له قرآنى نصوصو سره مخالفت لري او ضد واقع كيږي.

د غه راز آيتونه چه د غيب علم په الله تعالى پورې مختص ګڼي او هغه آيتونه چه د وحى او الهام په صورت غيبي پوهه د خداى له لوري انسان ته د وركړې قابله ګڼي يو له بله مخالفت نلري او څه تضاد پكښې نشته. الهامي پوهه چه خداى

پاک ئې دچاپه برخه کوي او په دغه وسیله انسان ته کشف الغیب حاصلېږي معنی ئې دانه ده چه انسان ته بالذات علم الغیب حاصل شویدی بلکه دالهي علم یو جزئې پرتو دی چه انساني قلب ته د القا په صورت رانقل شویدی او عالم الغیب یوازې خدای پاک دی اوبس. الله تعالی ته هم عالم الغیب په دې لحاظو وایو چه غیبي شیان زمونږ له نظر دي که داسې نه وي نو خدای پاک ته خو هیڅ شی غایب نه دي. لکه چه تصوف دزماني په تېریدو مختلف مراحل طی کړي او په هئیت او ماهیت کښې ئې تغیر راغلي دي په صوفیانو کښې دغه بدلون لا ډېر محسوس او مشهور دی. دنن ورځې صوفي دپرون صوفي ندی بلکه ضدئې دی. دپرون صوفي ابراهیم ادهم دجاه وجلال په بها صوفي توب حاصل کړ او دنن صوفي په صوفیتوب ددنیا جاه وجلال حاصلوي.

هغه صوفي ځان دخدای باله او داصوفي خدای دځان بولي. صوفي اوس هم وړینې جامې اغوندي او پخوائي هم اغوستې مګر دا وړۍ او هغه وړۍ ډېر تفاوت لري.

چیرته هغه شړله زیږه صوفیانه شړۍ چیرته دا د پت نفیس وړین ټوکر چه بې بډایانوئي بل څوک نشي اغوستی. تصوف او متصوف هم لکه دنن او پرون صوف وګڼئ. صوفي اوس هم پرهیزګار دی او پخوا هم و خو دا پرهیزاو هغه پرهیز یو نشو ګڼلی. هغه له خوندنو او مزو پرهیز کاوه او دی له بیخونده او بې مزې شیانو پرهیز کوي.

هغه ځان خوار اوه او دی خلک خواروي. دپرون صوفي دباطن صفائي درلوده او د نن صوفی په ږیره او جامو کښې ظاهري صفائي لري. هغه صوفي هم بی نیازه و او دی هم. خو هغه دا ستغنا په وجه او دی د ډېرې غنا په وجه. هغه دنیا ته شاکړه او ده په شاکړه.

پخوا به هم صوفیانو زیاته شپه په ویښه تیروله او اوس ئې هم تیروي. فرق تش همدومره دی چه هغوی په طاعت او عبادت مشغول و او دوی په عیش وعشرت.

دپرون صوفي لکه دیوجانس دسکندر سیوری په خپل سر نه قبلاوه. مګر دنن صوفي ئې ظل الله ګڼي او سرپرې ماتوي.

لکه چه او سنی صوفي پخوانی صوفي نه دی دغه شان ددې وخت مسلمان هم دصدر اسلام له مسلمان څخه ډېره فاصله لري. یو زراوڅو سوه کاله بعد څه کمه فاصله نه ده. اسلام اوس دیوه رسم په حیث رسیمت لري او په عمل کښې ئې یوازې د عبادت جنبه عادت ګرځیدلی ده. داسلام شرعي احکام په اسلامي ممالکو کښې د تطبیق وړ نه ګڼل کېږي او اصلي منظور یې له نظره لویدلی دی او اوسنی دماغ داسې فکر کوي چه اسلام باید په اجتماعي نظام کښې څه دخل ونلري او د ذهني موجود په حیث دیوې غیرعملي مفکورې په شان وساتل شي.

اوس په اکثرو اسلامي هیوادو کښې اسلام سیاسي شوی او د سیاسي مصلحت پاسباني کوي.

ډېرو اجتماعي نظامونو د تاریخ په اوږدو کښې د سیاسي اسلام حمایت او رعایت تر هغه حده کړی چه د سیاست او سیاسي اقتدار په ګټه و او هغه اسلامي روحیه ئې وخت په وخت وژلې ده چه شخصي اقتدار او مطلق العنانۍ سره ئې مبارزه او مجادله کوله.

هو ! دا روحیه ئې وژله مګر د دغه مرحوم جنازه ئې په ډېرو شاندارو مراسمو خاوروته سپارله او معابد او زیارتونه ئې ډېر مجلل جوړول له اجیرو او مجبورو ملایانو ئې دخپلو غوښتنو مطابق فتواګاني اخیستې او تحریفونه، بدعتونه ئې په اسلام کښې راګډول.

همدغه وجه ده چه په اسلامي احکامو کښې متضاد حکمونه او متناقض مسائل راپیدا شوه او دصحیح او غلط تشخیص له هر مشکل نه مشکل کار شو. سربیره په دې ځینو نامسلمانه استعماري قدرتونو اسلام کښې له جعل کارۍ نه کار واخیست او جعلي اسلام ئې په مختلفو شکلونو استعمال کړ، او د عمل په ژبه ئې دا وښودله چه له اسلام نه هر څه جوړیدی شي حتی چه دکفر خدمتګار هم.

قادیانیت دجعلي اسلام یوه څرګنده نمونه ده.

په اسلام کښې دمختلفو فرقو او مختلفو عقایدو ظهور د خلفای راشدینو نه وروسته شروع شوا و علاوه دشیعه او سني په دښمنۍ نورې فرقې او تفرقې هم راژوندۍ شوې.

د امویانو او عباسیانو په وخت کښې د متکلمینو معارضې او مجادلې تودې شوې او په دوو فرقو وویشل شوه چه یوه معتزله او بله اشعریه یا اشاعره بلل کېږي. د همدغو دوو فرقوله اختلافونو او استدلالونو څخه علم کلام را پیدا شو او عقلي دلایل په دیني مسایلو کښې دخیل شوه چه شک او تردید ورسره ملګري و.

# متکلمین او علم کلام

د لومړي هجري قرن په آخر کښې مسلمانان په اسلامي عقایدو کښې لکه: توحید ، تجسم ، جبر او اختیار ، معاد ، ایمان ، او داسې نور له اختلافاتو سره مخامخ شوه او د هرې عقیدې خاوندانو د خپلې عقیدې د اثبات د پاره عقلي دلایل پیدا کول د دغو دلایلو راغونډول ، تصنیف او تالیف د علم کلام اساس وګرځید او د عقل مذهب په دین کښې حلول او نفوذ وکړ چه معتزله پکښې ډېره درنه برخه لري.

حسن بصري چه د تصوف د لومړۍ مرحلې په سر کښې واقع دی او د دغې مدرسې مدرس ئې بللی شو یو شاګرد ئې (واصل بن عطا ) ؤ چه په یوه مسئله کښې له خپل استاذ څخه مخالف شو او په مسجد کښې ئې له هغوی نه بېل ځای ونیوه او اعتزال ئې اختیار کړ چه استاذ ئې هم دده په باب وویل: (اعتزل واصل عنا ) یعنې له مونږ څخه لیرې او بېل شو.

واصل بن عطا لږ څه وروسته د خپل استاذ د یوه بل شاګرد عمرو بن عبید په ملګرتیا یوه نوې ډله جوړه کړه چه (معتزله) وبلل شوه یعنې د صوفي شاګرد معتزلی شو او معتزله فرقه ئې تاسیس کړه. معتزله د متکلمینو هغه فرقه ده چه (قدر) نفی کوي او له اهل سنتو سره په ځینو عقایدو کښې اختلاف لري او له کراماتو او معجزاتو څخه منکر دي او په آیتونو تاویل او تفسیر نه مني.

لومړۍ مسئله چه واصل بن عطا له خپل استاذ حسن بصري سره پکښې اختلاف درلود هغه د ګناهګارانو مسئله وه. مسلمانان هغه وخت په دغه مسئله کښې دوه ډلې ؤ. ځینو د کبیره ګناهونو مرتکبین کافر ګڼل ځینو نورو فاسقان بلل. حسن بصري ورته منافقان ویل چه له کافرانو نه ډېر بتر دي.

واصل بن عطا پدې خبره کښې له استاذ سره مخالف شو او ویې ویل دوی نه کافران دي او نه مؤمنان بلکه بین المنزلتین منزلت لري او د کفر او ایمان په برزخ کښې واقع دي.

دغه د منزلت بین المنزلتین عقیده معتزله ؤ په نورو مواردو کښې هم تطبیقوله لکه د حضرت عثمان (رض) قتل ، د جمل او صفین واقعه او داسې نور او دا د امویانو په ګټه وه ځکه دوی هم د اعتزال مذهب ته را او ښتل.

د معتزله فرقې په مقابل کښې د متکلمینو بله فرقه اشعریه یا اشاعره وه.

د معتزله فرقې یو تن (ابو الحسن بن اسماعیل اشعري ) چه له عبد الوهاب جبائی معتزلی څخه ئې زده کړه کوله دیوه خوب د لیدو په وجه له معتزلي مسلک څخه وګرځیده او له فلسفي روش څخه ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنتو او اسلامي سني فقهي ته مخه کړه او حنبلي مذهب ئې اختیار کړ. ده وویل زه د خدای په کلام او د پیغمبر په سنتو یعنې په هغو احادیثو تمسک کوم چه اصحابو او د حدیثو امامانو ئې روایت کړی دی.

اشعریه یا اشاعره فرقه همدغه ابو الحسن اشعري ته منسوبه ده چه د معتزلی شاګرد و. اشعریه په حقیقت کښې د کوم نوي مذهب پیروان ندي بلکه په اصولو کښې د هماغه څه تابع دي چه اصحاب حدیث پرې عقیده لري.

علم کلام چه دیني مسایل په عقلي دلایلو ثابتوي او معتزله فرقې د اشاعره ؤ په خلاف د غه علم ته ډېره توسعه ورکړه منبع ئې یوناني فلسفه ده.

متصوفین د غه علم ته ښه نظر نلری او ځینې ئې که ډېر مخالف ندي ډېر موافق هم ندي. امام غزالی وایي: ( قرآني دلایل لکه غذا هر انسان ته ګټه لري او د متکلمینو دلایل لکه دوا رنځورانو ته په کار ده. )

ابن عیاد هم علم کلام لکه طب ګڼي او وایي چه د صحت خاوندان ورته څه ضرورت نلري.

جنید مشهور صوفی یوه ورځ په لاره تېرېده چه هلته متکلمین ناست و. ده پوښتنه وکړه چه دغه کسان څوک دي؟ چا ورته وویل دا هغه خلک دي چه د خدای تنزیه او له عیبونو څخه پاکوالی په عقلی دلایلو ثابتوي. جنید وویل: (نَفيُ العَیبِ حَیثُ یَستَحِیلُ العَیبَ عَیبُ) یعني هلته چه عیب محال دی د عیب نفی کول هم عیب دي. امام شافعي او امام احمد حنبل د سني فقهي امامان سفیان ثوري او اکثرو محدثینو دغه علم تحریم کړی دی. لکه چه د مخه وویل شوه په اسلام کښې معارضې مباحثې او مناظرې څه په خپله د مسلمانانو ترمینځ او څه د نورو مذاهبو د پیروانو له خوا د امویانو او عباسیانو په وخت کښې زیاتې شوې او کله چه خلیفه منصور عباسی فرمان صادر کړ چه د جهان علمي او مذهبي کتابونه په عربي ترجمه شي نو د دغو ترجمه شوو کتابونو په لوستلو د مسلمانانو په عقاید و کښې نوره ګډوډي هم راغله او د عقلی دلایلو بازار تود شو.

د هارون الرشید پلار خلیفه مهدي چه د نوې پوهې ټینګ طرفدار و امر ئې وکړ چه اسلامي پوهان د اسلام د مخالفانو په ځواب کښې کتابونه ولیکی او اعتراضونه ئې رد کړي. ابو الهذیل (۱۳۱-۱۳۵ هجري) لومړی سړی وچه په علم کلام کښې ئې ډېر کتابونه ولیکل.

له خلیفه مهدي نه وروسته د ده ځوی هارون الرشید په ابتداء کښې علم کلام ته په بد نظر کتل او له متکلمینو سره ئې رویه سخته وه مګر ډېر ژر ئې په یوه خبره علم کلام ته نظر ښه شو او علاقه ئې ورسره پیدا شوه. خبره دا وه چه د هند مهاراجا یو خط هارون الرشید ته ولیکه چه مسلمانانو خپل دین د توري په زور په خلکو و مانه که چېرې د اسلام اثبات په دلیل او برهان کولی شئ یو عالم راولېږئ که زه ئې قانع کړم اسلام به ومنم.

هارون الرشید یو فقیه ورولېږه او د مهاراجا له خوا د مباحثې د پاره یو نماینده وټاکل شو چه فقیه ته ئې وویل: ستاسو خدای قادر دی که نه؟ فقیه وویل: هو! د خدای یو صفت قدیر دی او کامل قدرت لري.

د مهاراجا نماینده وویل: آیا ځان په شان خدای پیدا کولی شي او د خپل مثل په پیدا کولو هم قادر دی.

فقیه جواب ورکړ: چه دا راز بحثونه په علم کلام پورې ارتباط لري او مونږ د غه علم او دغه راز بحثونه بد ګڼو.

هارون الرشید وروسته تر هغه متکلمین راوغوښتل او له هغوی څخه ئې معمر بن عباد د مباحثې د پاره انتخاب کړ. د مامون په وخت کښې علم کلام د رشد مرحلې ته ورسیده او معتزلهؤ د هغه مهارت له مخې چه په فلسفه کښې ئې درلود د علم کلام علمي تدوین ته ئې اقدام وکړ.

وائي چه د علم کلام نوم په دغه علم ځکه کېښودل شو چه یو مهم بحث پکښې په الهی کلام باندې ؤ او ډېرې خبرې په دې باندې کېدې چه قرآن مخلوق دی او که نه دی؟ ځینې وائي د فلسفې یو شاخ منطق دی او کلام د منطق په معنی دی ځکه د دغه علم نوم علم کلام کېښودل شو.

دا نوم د عباسیانو په وخت کښې وضع شو او پخوا تر هغه کلامي بحثونه (فقه الدین) بلل کېده د (فقه العلم) په مقابل کښې. په همدغه وجه د امام ابو حفیفه هغه کتاب چه په عقاید و کښې ئې ولیکه (فقه الاکبر) و بلل شو.

په علم کلام کښې د معتزله او اشعریه ځینې مهم اختلافونه دا دي:

## وعد او وعید:

الله تعالی په خپل کتاب کښې ډېر ځایونه نیکانو ته د اجر او ثواب وعدې ورکړیدي او ګنهګارانئې په زجر او عذاب ویرولي دي د عدالت تقاضا هم دغه ده چه انسان د خپلو ښو کارونو په مقابل کښې ښه ومومي او د بد یو سزا ورکړه شي.

دلته دا سوال پیدا کېږي چه آیا په خدای باندې د وعدو او وعیدونو په ځای کول حتمی او لازمي امر دی که نه دی. یعنې الله تعالی په عدل مکلف دی او که نه؟

اشاعره وایي: په خدای پاک باندې څه واجب ندي هغه فعال مایشا دی او کولی شي چه مطیع او فرمانبردار ته سزا ورکړي. او ګناهګار ته د رحم او کرم له مخې اجرونه ورکړي.

امام غزالي وايي: الله تعالی ټول کافران بخښلی شي او ټول مومنان معذب کولی شي ځکه چه خدای د ټولو او د هرڅه مالک دی نو په خپل ملک کښې هر راز تصرف کولی شي.
معتزله وايي: د مطيع دپاره اجر او د ګنهګار دپاره (چه بې توبې مړشي) زجر په خدای واجب دي. که داسې نه وي نو پاک خدای به په هغه څه کښې چه مونږ ته ئې خبر راکړی دروغجن شي (العياذبالله) او دا کار له عدل او انصاف نه هم لرې دی او پاک خدای په خپله وايي: (وَمَا أَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ سورت ق آيت ۲۹ ) يعنی زه په بندګانو ظالم نه يم.

## احباط:

په طاعت او عبادت او په ښو عملونو د ګناهونو محوه کيدل او په بدو عملونو او ګناهونو د نيکی له مينځه تلل هم اختلافي مسئله ده.
په قرآن کريم کښې دا هم راغلي دي: ( إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ سورت هود آيت ۱۱۴ ) يعنی حسنات سيئات له مينځه وړي.
له بلې خوا دا هم په قرآن کريم کښې ځو ځايه راغلي دي چه شرک او کفر نيک عملونه ضايع کوي او له مينځه ئې وړي مګر په صورت حجرات کښې د پيغمبر په حضور کښې په جګ اواز غږيدل او داسې په جهر غږيدل لکه چه مسلمانان په خپلو مينځو کښې يو له بل سره غږيږي دا کار هم چه شرک او کفر ندی بيا هم د اعمالو احباط ( حبط کول ) او ضايع کيدل ګڼل شويدي.
(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَن تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ الحجرات آيت ۲ ) معتزله د احباط په باره کښې وايي: که يو مومن د ګناه مرتکب شی نيک عمل ئې له مينځه ځي او په ښه عمل باندې بد عملونه مينځل کيږي نو په دغه اساس د انسان وروستی عمل اعتبار لری او محوه شوی عملونه په حساب کښې نه راځی.
اشاعره وايي: ښه او بد عملونه ځانته حساب لري او محاسبه کيږي. د اشاعره و په نزد د تيرو اعمالو محوه کيدل يعنې (احباط ) په انکار پورې ارتباط لري او د کفر په صورت کښې پخوانی نيک عملونه له مينځه ځی او بس. لکه چه الله تعالی فرمايي: (لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ سورت زمر آيت ۶۵ ) يعنې که څوک مشرک شي نو عمل ئې حبط کيږي. اشاعره وايي: د مومن او مسلمان حسنات او سيئات تلل کيږي که بدې ئې زياتې وه داسې به وې لکه چه هيڅ نيکي ئې نه وي کړې که د نيکی پله ئې درنه وي بې ګناه به وګڼل شي دا ځکه چه اکثر په لږو غالب وي او اقل له مينځه وړي.
صاحب المواقف وايي: د چانيکې او بدې که مساوي وي امکان لري چه ثواب په عقاب رجحان ولري.

## شفاعت:

د شفاعت مسئله هم له اختلافي مسائلو څخه ده چه دواړه فرقې پکښې اختلاف لري.
اشاعره وائي: پيغمبر د کبيره ګناه د مرتکبينو شفاعت کوي چه له عذابه يې خلاص کړي او نجات ومومي.
معتزله وايي: د شفاعت معنی دا نه ده چه د عذاب مستحق له عذابه خلاص شي بلکه د اجر او ثواب خاوند ته د اجر او ثواب زياتول د شفاعت معنی ده او پيغمبر د هغه چا شفاعت کوي چه د ثواب مستحق وي چه خدای ئې په اجر کښې زياتول وکړي او درجه ئې لوړه کړي.
په قرآن کريم کښې دا واضحه ده چه د کافرانو شفاعت نشي کيدی او نه شفاعت څه فايده ور رسوي: (فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ المدثر آيت ۴۸ ) هم دغه معنیٰ افاده کوي.

په ځينو آيتونو کښې شفاعت دخداى په اذن پورې موقوف ګڼل شوى لکه پدې آيت شريف کښې: (مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ البقره آيت ۲۵۵) يعنې څوک دى هغه چه دخداى په نزد شفاعت وکړي مګر دهغه په اذن. په بل آيت کښې راغلي دي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَنفِقُواْ مِمَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لاَّ بَيْعٌ فِيهِ وَلاَ خُلَّةٌ وَلاَ شَفَاعَةٌ -البقره آيت ۲۵۴) په دې ايت کښې مومنانو ته ويل شويدي چه خپل مالونه دخداى په لاره کښې نفقه کړئ پخوا تردې چه هغه ورځ راشي چه نه پکښې خريد او فروش شته نه دوستى او نه شفاعت.

## دپيغمبرانو عصمت:

د انبياؤ په معصوميت کښې هم د نظر اختلاف موجود دى.
معتزله وايي: کيدى شي چه انبيا د نبوت نه دمخه دلويو او وړو ګناهونو مرتکب شوي وي او وروسته له نبوته هم د وړو ګناهونو مرتکب شى، يعنى دوى پس له نبوته انبيا له کبيره ګناهونو نه معصوم ګڼي.
اشاعره وايي: پخوا له نبوته دا امکان موجود دى چه انبيا دلويو او وړو ګناهونو مرتکب شي او وروسته له نبوته هم کيدى چه سهواً دلويې ګناه مرتکب شي مګر په قصدي او عمدې ډول غټه ګناه نه کوي يعنى له کبيره ګناه نه په قصدي صورت له نبوت نه وروسته معصوم دي.

## معجزه اونبوت:

معتزله لکه چه د اولياؤ له کراماتو څخه منکردي دغه شان د انبياؤ له معجزو ښکاره کولو نه هم انکارکوي او نه ئې مني.
اشاعره وايي: نبوت يو مقام دى چه دخداى له لوري دخلکو د هدايت دپاره چاته ورکول کېږي او پيژندنه ئې پدې کښې کېږي چه خداى په خپل قدرت د معجزې ښکاره کولو توان پيغمبرته ورکوي.
دوى معجزه د نبوت شرط ګڼي او د معجزې دپېژندلو دپاره دا شرطونه تعيينوي:
دخداى فعل دې وي، خارق العاده دې وي،.بل څوک دې هغه کار ونکړى شي. دنبوت دمدعي لخوا دې عملي شي. له دعوې سره دې موافق وي، د پيغمبرانو او د ده د دعوې په ضددې نه وي.
د معجزې په خارق العادة توب کښې ځينې پوهانو ويلي دي چه که د خارق العاده کارمعنىٰ دا وي چه د طبيعت د نظام او د فطرت د اصولو په خلاف د علت او معلول له سلسلې نه بهر وي دا راز کارهيڅ ممکن ندى او که دغسې نه وي نو خارق العاده ويل ورته څه معنىٰ لري او نه ښائي چه د معجزې اساسي شرط وګڼل شي.
د اشعريانو مشران لکه امام رازي او امام غزالي چه د متکلمينو دغسې ايرادونو ته متوجه شوه نو د خرق عادت قيدئې لغوه کړ لکه چه په شرح مواقف کښې ليکل شويدي: (وَالمُعجِزَةُ عِندَنَا مَا يَقصُدُبِهِ تَصدِيقُ مُدَعِي الرِسَالَةِ وَاِن لَم يَکُن خَارِقاً لِلعَادَةِ) يعنى زمونږ په نزد معجزه هغه ده چه دنبوت د مدعي تصديق پکښې مقصود وي که څه هم خارق العاده نه وي.
امام فخر رازي وايي: په نبوت باندې باورلرونکي دوه ډوله دي:
يو هغه چه معجزه د پيغمبرى شرط ګڼي بل هغه چه وايي مونږ بايد اول په دې پوه شو چه ښه او بد عقايد او کارونه کوم دي او بيا وګورو څوک چه خلک يوه دين ته رابولي په خبرو او تعليماتو کښې ئې دنيکۍ او حقيقت څومره اثر شته او دا بلنه خلک تر څه اندازې له باطلو نه حق ته راګرځوي که چيرې دا يقين حاصل شي چه هغه پيغمبردى نو بيائې اطاعت لازم او واجب دى.
امام رازي وايي: (دمعجزې نفى له قرآن څخه صراحتاً معلومېږي چه فهم ئې مشکل ندى.)

الله تعالی په سورة انعام کښې وايي: (وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ سورت انعام آيت ۴۸) يعنې نه لېږو پيغمبران مګر زيري ورکوونکی او ويروونکی.

دا مطلب په قرآن کريم کښې څو ځله مکرر راغلی چه د پيغمبرانو کار د خلکو خبرول دي چه د ښو عملونو په مقابل کښې د ښه پاداش زيری ورکړي او د بدو کارونو له عواقبو څخه ئې وويروي. د پيغمبرانو وظيفه همدغه ده او نور د خلکو کار دی چه مني ئې که ردوي ئې. په دين کښې اکراه نشته او حضرت محمد ته د خدای له لوري ويل شوي دي چه ته د خلکو په مسلمانولو مکلف نه ئې څه چه تا ته وحی کېږي هغه خلکو ته رسوه او بس.

په دغه اساس معجزې ته هيڅ ضرورت نه پيدا کېږي چه د رسالت شرط ئې وګڼو ځکه الله تعالی حضرت محمد (ص) ته وايي: (قُل لاَّ أَقُولُ لَكُمْ عِندِي خَزَآئِنُ اللّهِ وَلا أَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلا أَقُولُ لَكُمْ إِنِّي مَلَكٌ إِنْ أَتَّبِعُ إِلاَّ مَا يُوحَىٰ الى – سورت انعام آيت ۵۰) يعنې ووايه، نه وايم تاسو ته چه ما سره د خدای خزانې دي او نه وايم چه په غيب پوه يم او نه وايم تاسو ته چه زه ملک يم، پيروي نه کوم مګر د هغه شي چه وحی ئې را ته شويده.

هر کله چه پيغمبر د خدای له لوري مامور دی چه خلکو ته ووايي چه ما سره نه خزانې شته، نه علم غيب او نه زه ملک يم بلکه تاسو غوندې بشر يم او د وحی پيروي کوم نو بيا د معجزې لرلو سوال څنګه پيدا کيدی شي.

په سورة اعراف کښې هم پاک خدای حضرت محمد (ص) ته داسې امر کوي: (قُل لاَّ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلاَ ضَرًّا إِلاَّ مَا شَاء اللّهُ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لاَسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ إِنْ أَنَاْ إِلاَّ نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ سورت اعراف آيت ۱۸۸).

يعنې ووايه ! مالک نه يم د ځان د پاره د نفع او نه د ضرر مګر هغه چه د خدای رضاوي که زه په غيب پوهيدلی هرګوره به مې ډېر جمع کړي وُ، د منفعت له جنس څخه او نه به رسيدله ما ته هيڅ بدي.

نه يم زه مګر ويرونکی او زيری رسوونکی د داسې قوم د پاره چه ايمان لري. دغه راز واضح بيانونه چه په قرآن کريم کښې راغلي دي امام رازي حق لري چه وايي قرآن معجزه په صراحت نفی کړيده. له معجزې نه خو معتزله چورمنکر دي او اشاعره هم په کښې دوه ډلې دي چه يوه ډله ئې د نبوت شرط نه ګڼي يائې خارق العاده توب لازم نه ګڼي او په دغه صورت کښې د معجزې مفهوم له مينځه ځي او يوه مشکله موضوع د حل لاره پيدا کوي. که چيرې معجزه نفی نشي بلکه خارق العاده کار او د نبوت شرط وګڼل شي او دا ټکی هم ورسره شي چه بل څوک هغه کار ونکړی شي نو بيا علاوه په عقلي او علمي استحاله چه د طبيعت او فطرت د اصولو خلاف د علت او معلول سلسلې نه بهر څه نشي کيدی دا مشکل هم پېښېږي چه اشاعره د پيريانو او شياطينو په وجود او د انسان په بدن کښې د دوی په حلول او نفوذ هم عقيده لري او دا منی چه د بنيادم په وجود کښې د پيريانو حلول د دې باعث کېږي چه له دغه شخص نه خارق العاده چارې څرګندې شي او د تعجب وړ وي. نو په دغه صورت کښې به د يوه پيرياني او سحرکار فرق چه د نبوت ادعا وکړي له رښتياني نبي نه په څه شان وشي؟ له بلې خوا هغسې کسان لکه: عبدالله بن مقنع، حکم بن عطا مزدک چه پخپل وخت کښې حيرانوونکي خارق العاده کارونه کړيدي يا اوس د مسمريزم او هيپنوتيزم په اساس صورت مومي له معجزې نه به ئې څنګه بيلوو او تشخيص به ئې کوو.

عبدالله بن مقنع دوه مياشتی د نخشب په شاوخوا کښې ځلانده سپوږمی له څا نه راويستله چه تر څلورو فرسنګو پورې ئې ځمکه رڼا کوله.

مزدک هم څه داسې وسيله پيدا کړې وه چه د اور له مينځ څخه به ئې خبرې کولې. بله دا چه که وويو چه بل څوک دې هغسې کار ونه کړی شي که د دې خبرې معنی داوي چه د معجزې د وقوع په وخت کښې دې څوک ونکړی شي نو بيا بايد عبدالله بن مقنع پيغمبر وګڼل شي ځکه چه هغه وخت بل چا دغه کار نشو کولی او که مقصد داوي چه د جهان تر آخره څوک ونکړی شي دا پيشګوئي به څوک څنګه وکړي چه دا کار په وروستيو زمانو کښې څوک نشي کولی. هغه شفاګانې چه د عيسیٰ (ع) معجزه وه اوس د هپنوتيزم او مسمريزم په وسيله کيدی شي چه لکه معجزه کوم خاص علت نلري

دهمدغسې ملاخطاتو په وجه د متکلیمنو مهم اشخاص: امام غزالي، امام فخررازي، ابن رشد، راغب اصفهاني او شاه ولی الله یا معجزه د رسالت شرط نه ګڼي یائې له خارق العاده توب څخه مجزا کوي او د عقلي استدلال په حیث ئې د نبوت له موضوع سره مربوطوي. داؤ د معتزلیانو او اشعریانو ځیني مهم اختلافونه چه په علم کلام کښې مطرح شوه او له حسن بصری صوفي سره د هغه د شاګرد واصل بن عطا اختلاف ئې اصلی منشا او مبدا وه. په دغو اختلافاتو پسې نور هم ډېر اختلافونه راروان واو په مختلفونومونو، مختلفې فرقې په اسلام کښې راپیدا شوې چه مظاهر ئې ډېر ځرګند او ښکاره دي.

هماغسې چه په عیسوي دین کښې پروتستان (په پاپ باندې عقیده نه لرونکي) کاتولیک (دپاپ پیروان) او ارتدکس (په دین کښې رښتوني او د صحیح دین پیروان) پیدا شوه په اسلام کښې زیات شمیر مذهبونه او مسلکونه مینځ ته راغلل او د اسلام تطبیق د زمان او مکان د اختلاف په وجه مختلف شکلونه او صورتونه پیدا کړه. قرآن کریم که څه هم په اصلي صورت محفوظ پاتې دی او تحریفات ئې په متن کښې نه دي راغلي مګر د تفسیر او تاویل له لارې پکښې راز راز تعبیرونه وشوه او د متضادو افکارو د استدلال ماخذ وګرځیده.

د اسلام دین چه تقریبا څوارلس سوه کاله د مخه دنیا ته راغی او اوس پرې ډېرې پیړۍ تیرې شویدي، ډېره اوږده زمانه ئې طی کړیده او په دې کښې شک نشته چه د زمانې دغو مره ډېر تغیر د ژوند په ټولو خواو کښې ډېر بدلونونه راوستي دي او دین هم له دغو تغییرونو څخه مصئون نه دی پاتې.

ځیني پوهان وايي د اسلام دین د نورو ادیانو په شان یوه اجتماعي پدیده وه چه پخپل وخت کښې د ترقی او تکامل په لور یو قوي او مفید حرکت و او ډېر اصلاحات ئې وارد کړه مګر څومره چه تولید او تولیدي وسایل ژر ژر تغیر کوي اجتماعي روابط او سازمانونه ئې نه کوي او ادیان څه موده وروسته نشي کولی چه ځان د تولید له څرنګوالي سره مطابق کړي په همدغه وجه بالاخره د ترقیاتو په مخکښې سد کېږي او دا ضرورت مینځ ته راځي چه باید مذهبي اصلاحات شروع شي او د مذهب او تولید ترمینځ نسبي تطابق مینځ ته راشي خو سره له دې بالاخره هغه ځای ته رسېږي چه بیا اصولاً دین له تولید سره هیڅ مطابقت نه کوي او له مینځه ځي دا خبره چه هر څنګه وي، وي به. دلته د بحث وړ دا خبره ده چه ایا د اسلام دین د زمانې تغییر ته څه اعتنا کړیده او که نه؟ آیا په دیني او شرعي احکامو کښې ئې د اجتماعي بدلون په وجه سازش او تطابق ته لاره خلاصه پرېښې ده که تړلې یې ده؟

په اسلامي فقه کښې خو د مذهب امامانو ځان ته د اجتهاد دروازه بیرته کړه او د زمان او محل په اعتبارئې داسې احکام وضع کړه چه ضرورت ئې تقاضا کوله.

دعموم البلوی اصطلاح په همدغه وجه مینځ ته راغله او: (اَلضَّرُورَاتُ تُبِیحُ المَحضُورَاتِ) یعنی ضرورتونه ممنوعات مباح کوي یو مهم اصل وګڼل شو. (ګرضرورت بود روا باشد) په دیني او شرعي احکامو کښې اجتماع او قیاس وروسته له آیت او حدیث څخه دوه مهم اصله ګڼل دا ثابتوي چه فقهاؤ له عصر او زمانې سره تطابق او د نوو احکامو استنباط او استخراج ضرور ګڼلي او دغه اصل ئې منلی دی.

په همدغه اساس اسلامي سني فقه د څلورو مذهبو د امامانو په اجتهاد تدوین شوه او د خلکو د احتیاج مطابق په شرعي احکامو کښې ډېره اضافه وشوه او ډېر نوي مسایل په عباداتو او معاملاتو کښې مینح ته راغله او بیا لوئې لوئې فتاوې راووتې او له اصولو او کلیاتو نه جزئیات استخراج شوه.

په شیعی فقه کښې خو اوس هم د اجتهاد سلسله جاري ده او مجتهدین د اجتهاد حق لري مګر په سني فقه کښې د اجتهاد دروازه وتړل شوه او د راتلونکو وختونو ایجابات او مقتضیاتو ته ونه کتل شوه ښائې د اجتهاد د دروازې تړلو یوه وجه داوي چه په اخره زمانه کښې دآخرې زمانې ملایان د دنیائي ګټو د پاره غلط حکمونه صادرنکړي او په دین کښې له سمې لارې نه منحرف نشي که دا کار په همدغه لحاظ هم شوی وي بیا هم ویلی شو چه په دین کښې د زمانې همدغه تاثیر چه پخوا اجتهاد جایز و او اوس ناجایز دی ډېرلوی تغیردی او ډیر زیات اهمیت لري که د آخرې زمانې ددیانت کمزوري د اجتهاد بندولو دلیل کیدی شي نوبیا داخرې زمانې دنوو ایجاباتو او مقتضیاتو د پاره د نوو

احکاموضرورت ولې د اجتهاد د دوام موجب نشي کيدی. که څوک دا ووايي چه د اجتهاد حق يوازې په څلوروامامانو (ابو حنيفه، شافعی، مالک او حنبل) پورې منحصر و نو ددې انحصاردليل به څه وي؟
هغه وخت چه دغو امامانو دفقهي مسايل راويستل په هماغه وخت کښې هم ددوی په معاصرينو اوشاګردانو کښې داسې کسان و چه مخالفت ئې ورسره کاوه لکه: (زفر، محمد او ابو يوسف) او دغه اجتهادي مخالفت د دين مخالفت نه ګڼل کيده پخپله د څلورو مذهبو يوله بله اختلاف دا ښيي چه عقلاً ممکنه ده چه څلور واړه مذهبه دمختلفو او متضادو احکامو لرلو سره بيا هم څلور واړه حق وګڼل شي او په يوه کښې هم څه غلطي نه وي. په همدغه وجه دا منل شويده چه يو مذهب به صحيح وي او نور دا جتهادي سهوې په وجه معاف وګڼل شي يا به په يوه مذهب کښې ځينې احکام صحيح وي او په ځينو کښې به اشتباه پيښه شوې وي: (اَلشّيخُ تَارَةً يُخطِي وَتَارَةً يُصِيبُ) شيخ کله خطاکيږی او کله حق ته رسيږي يعنې دا نشی کيدی چه ټول مجتهدين په ټولو اجتهادي احکامو کښې له سهو او خطاڅخه مصئون وي. د وروستی زمانې دايجاباتو او مقتضياتو رعايت په اسلام کښې معتبرګڼل شوی او پخپله دخدای په کتاب کښې داسې آيتونه شته چه د زمانې د تغير په وجه د ديني احکامو تغير راښيي او په دې مو پوهوې چه ديوه وخت احکام په بل وخت کښې د شرايطو او حالاتو په بدلون منسوخ شويدي.
سربيره په دې د خلفای راشدينو په وخت کښې هم ځينې مثالونه شته چه د وخت په بدلون د احکامو بدلون څرګند وي.
د رسول الله (ص) په زمانه کښې د اسونو زکات نه اخيستل کيږي مګر حضرت عثمان پخپل خلافت کښې د اسونو زکات واخيست او دليل ئې دا ؤ چه هغه وخت اسونه لږ و اودجهاد د پاره و مګر اوس ډېر شويدي او تجارتي مال ګرزيدلي دي چه بايد زکات ئې واخيستل شي. همدارنګه رسول الله (ص) د قرآن کريم په حکم مولفة القلوب د بيت المال په مال کښې د برخې خاوندان ګڼل او دوی ته ئې برخه ورکوله مګر حضرت عمر (رض) پخپل خلافت کښې مولفة القلوب ته څه نه ورکول او ويل ئې هغه وخت مسلمانان ضعيف و او د قلوبو تاليف ته ئې ضرورت درلود چه اوس ئې نلري.
په سورة انفال کښې الله تعالی خپل نبي ته امرکوي چه مومنان جنګ ته وهڅوه او ترغيب ورکړه چه که ستاسو شل تنه صابران وي په دووسووغلبه مومي او که له تاسو نه سل تنه وي په زرو کافرانو باندې بريالی کيږي: (يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُواْ مِئَتَيْنِ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّئَةٌ يَغْلِبُواْ أَلْفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُواْ سورت انفال آيت ۶۵)
وګورئ! په دې آيت کښې مسلمانان مکلف شويدي چه يو تن دلسو تنو کافرانو په مقابل کښې وجنګيږي خو څه موده وروسته چه حالات بدليږي يو بل آيت نازليږي او مومنانو ته وايي اوس خدای تخفيف درکړاو پوهی مو سپک شو. خدای پوهيږي چه په تاسو کښې ضعف راغی که اوس ستاسو سل تنه صابران وي په دوو سوو غالبيږي او که زر تنه له تاسو څخه وي په دوو زرو تنو باندې د خدای په اذن غلبه حاصلوي او خدای دصابرانو ملګری دی:
(الآنَ خَفَّفَ اللّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّئَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُواْ مِئَتَيْنِ وَإِن يَكُن مِّنكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُواْ أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ اللّهِ وَاللّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ - سورت انفال آيت ۶۶) دلته يو مسلمان د دوو تنو کافرانو په مقابل کښې په مقاومت مکلف دی او د زمانې په بدلون په ديني تکليف کښې ډېر کموالی راغلی دی د هجرت په آغاز کښې مسلمانان لږ و مګر ديني جذبه او روحيه ئې ډېره قوي وه چه يو به د لسو په مقابل کښې جنګيده اوبريالی کيده، حتی چه زر تنه مسلمانان له اتيا زره کافرانو سره جنګيدل او د موته په غزا کښې درې زره مسلمانان د دووسوو زرو يعنی دوو لکو په مقابل کښې پايدار پاتې شوه، د هجرت له اغاز نه څه موده وروسته چه لومړنی مسلمانان بوډاګان اوضعيف شوه اونوی نسل د پخوانيو مهاجرينو او انصارو په شان معناً اوروحاً قوي نه و او نه هغه کامل يقين ورسره و نو يو تن د دووتنو په مقابل کښې په جنګ مامورشو يعنې د رسول الله (ص) په حيات کښې د ډېر وخت په تېريدو په يوه قرآني

حکم کښېږدغومره فرق او تغېیر راغی او علت ئې هم د زماني تغییر وښو دل شو ځکه د تخفیف دآیت شروع په (الآن) باندې وشوه.

د اسلام ژوره، باریکه او صحیحه مطالعه چه اجتهادي پوهه هم ورسره ملګرې وي ډاډ راکوي چه اسلام په هروخت کښې د عصر له احتیاجاتو سره مناسب احکام وضع کولی شي او یوازې د اسلام اجتماعي عدالت دا استعداد او ظرفیت لري چه بشري سعادت تامین کړي اوبس.

# پای

